# د فقهي کتابونو له پانو څخه

(څلورمه برخه )

# روژه او اعتکاف

مفتي کفايت الله وردګ

# د کتاب په اړه

د کتاب نوم : د فقهي کتابونو له پانړو څخه (٤)

لیکوال : مفتي کفایت الله وردګ

د کمپیوټر چارې : محمد نذیر (ذبیح) 03138182431

د چاپ وار : لمړی

د چاپ شمېره : ۱۰۰۰ ټوکه

ZamZam Publication Company



زم زم خپرندویه ټولنه

Zamzam_publication@yahoo.com

00923009808094
00923009101098

Unit R 7 Alwajid Plaza, Faisalcolony Chawk, Dalazak road Peshawar, KPK, Pakistan



# د فقهي کتابونو له پانړو څخه

په زړونو کې د اسلامي جذبې لرونکو ځو ورونړو زمونږ ددې لپاره ملا تړلې ده چې تر پورتني نوم لاندې د کتابونو یوه سلسله روانه وساتو پدې سلسله کې مونږ کوښښ کوو چې په ساده او روانه پښتو کې د یني ضروري مسئلې را غونډې او خپلو پښتنو ورونړو ته یې وړاندې کړو سره ددې چې پدې موضوع کې کتابونه له وړاندې نه هم ډیر دي هرچا د خپل وس مطابق کوښښ کړی دی مونږ د هغوی د ټولو کوښښونو قدر کوو او د الله ① نه ورته اجر عظیم غواړو لکن په زمزم کې شریکو ملګرو چې ددې سلسلې لپاره کومه نقشه تیاره کړیده هغه تر بهتر څخه هم بهترینه ده پدې سلسله کې به داسې مسئلې را جمع کیږي چې په اسلامي معلوماتو کې څوک د صفر نه واخلې د مهارت تر حد پورې یې ورسوي او ددې سلسلې به له ډیرو صفاتو څخه یو صفت دا وي چې که څوک په ځان ددې د مطالعې التزام وکوي نو بغیر د استاذ نه به په کور کې دی تریڼه داسې مسئلې زده کولی شي لکه ژوندی استاذ چې دده سره په کور کې وي .

پدې کتابونو کې :

تاسې ته ستاسې په ژبه دیني مسائل وړاندې کول .

لتاسې سره د سمې لارې په پيدا کولو کې مرسته کول .

تاسې ته د اسلامي مطالعې لپاره د ښو او فايده منو موادو په لاس درکول .

له لويو کتابونو څخه لويې خبرې تاسې ته ستاسې د اسانتيا لپاره د وړو رسالو په شکل کې درکول .

ديني ضروري مسئلې چې کېدای شي اوس له تاسې نه هېرې شوې وي بېرته تاسې ته در په زړه کول .

مقدس دين ته په ښکلې پښتو ژبه خدمت کول .

او داسې نور مطلبونه خوندي دي .

پدې سلسله کې مونږ کوښښ کوو چې يوه خبره هم د خپل دماغ نه پکې ځای نه کړو د کتاب په آخر کې به مونږ د هغه فتاواوو او کتابونو لست خامخا ستاسې خدمت ته وړاندې کوو چې مونږ ترېنه اخذ کوو او په دې رساله کې به ټولې خبرې د حضرت امام ابي حنيفه رحمه الله د مذهب او مسلک مطابق وي .

که پدې اړه ستاسې څه ډول اعتراض، سوال، نيوکه، نکته، نظريه او يا مشوره وي نو ددې سلسلې چلونکي به يې لتاسې څخه نه يوازې د کور ودانې په ويلو سره په ورين تندي واوري بلکه د بيا چاپ کولو په وخت به ستاسې مشوره د خپلو کتابونو ښائست وګرځوي

لله الحمد داده ستاسې تر لاسونو پورې ددې مبارکې لړۍ څلورمه کړۍ در ورسېده او پدې کړۍ کې مونږ په روژه ، اعتکاف او د هغې په اړوند مسئلو بحث کړی دی امید دی چې ستاسې د خوښې وړ به وګرځي .

مننه

د زمزم خپرندویه ټولنې اداره

E-mail: zamzam_publication@yahoo.com

Fb.com/zamzam07



# سريـزه

د انـسـان د عمـر ورځې داسې تېرېـږي لـکه پـه وريـځ پـسې چې بـاد شـوی وي او هـغـه يـې پـه چټکتيا سره يـو لـوري تـه وړي او ددې ژونـد نـه بـه صرف هغه وخت زمـونږ پـه کـار کـيږي چې کـوم مـو د الله ﷻ د رضا لـپـاره پـه کـوم ښه کـار کـې لـګولـی وي لـکن پـه اوس وخت کـې ډېـر کم بـه داسې خلـک وي چې د خپل ژونـد پـه هره بـرخـه کـې ورسره دا فـکر مـلـګری وي چې پـدې دنـيـا کـې د انـسـان د پـيـدائـښت مـقـصد صرف د الله تـعـالـی عبـادت کـول دي داسې کـسـان چې ژونـد رښـتـيـا د هـغـه مـقـصد لـپـاره اسـتـعـمـالـوي د کـوم لـپـاره چې دوی تـه ورکړل شـوی ډېـر کم دي او پـاتـې مـونـږ ټـول پـه خـپـلـو ژونـدونـو بـوخت يـو الله تـعـالـی مـونـږ تـه فـرمـايـي :

سورة الـفـرقـان آيـة ٦٢

وَهُوَ ٱلَّذِى جَعَلَ ٱلَّيۡلَ وَٱلنَّهَارَ خِلۡفَةً لِّمَنۡ أَرَادَ أَن يَذَّكَّرَ أَوۡ أَرَادَ شُكُورًا ﴿٦٢﴾

تـرجمـه : او همدا الله ﷻ هغـه ذات دی چې ګـرځـولـې يـې ده شپـه او ورځ (سره د مخـالـف يـا خـلـيـفـه يـو د بـل) پـر لـه پـسې د پـاره د هغـه چا چې اراده لـري

ددې چې یاد کړي (نعمتونه د رب ستا) یا اراده لري د شکر ویستلو.

ددې لپاره چې انسان په دې خپل لنډ عمر کې د خپل آخرت لپاره ذخیره جوړه کړي الله ﷻ انسانانو ته مبارکې ورځې پیدا کړې دي چې په هغه ورځو کې کار وکوي نو الله ﷻ ورته زیات ثواب ورکوي او ځینې یې داسې مبارک ځایونه ورته پیدا کړي دي چې هلته عبادت کول ډېر ثواب لري ددې لپاره چې بندګان د خپل آخرت د ژوند لپاره پکې څه وکوي د دې مبارکو وختونو څخه یو وخت د رمضان مکمله میاشت ده چې الله ﷻ ددې میاشتې په اړه په قران کریم کې فرمایلي دي :

سورة بقرة آية ۱۸۵

شَهْرُ رَمَضَانَ ٱلَّذِى أُنزِلَ فِيهِ ٱلْقُرْآنُ

ترجمه : **د رمضان میاشت هغه ده چې قران پکې نازل شوی دی .**

**د رمضان په میاشت کې یو غوره عبادت فرضي روژه ده پدې کتاب کې د خپل وس مطابق د رمضان او د روژې اړوند څه مسائل ستاسې خدمت ته ډالی کیږي پدې امید چې ستاسې د فایدې وړ به وګرځي .**

# رمضان

## د رمضان میاشت په تاریخ کې

⇦ د رمضان د میاشت په اول تاریخ په حضرت ابراهیم علیه السلام باندې صحیفې نازلې شوې وې .

⇦ د رمضان د میاشت په شپږم تاریخ په حضرت موسی علیه السلام باندې تورات نازل شوی دی .

⇦ د رمضان په دیارسلمه په حضرت عیسي علیه السلام باندې انجیل نازل شوی دی .

⇦ د رمضان په ۱۸ په حضرت داود علیه السلام باندې زبور نازل شوی دی

⇦ حضرت عیسی علیه السلام اسمان ته د رمضان په میاشت کې پورته کړل شو (المستدرک)

⇦ لکه مخکې چې تېرشول قران کریم په رمضان کې نازل شوی دی .

سورة بقرة آیة ۱۸۵

شَهْرُ رَمَضَانَ ٱلَّذِى أُنزِلَ فِيهِ ٱلْقُرْآنُ

ترجمه : **د رمضان میاشت هغه ده چې قران پکې نازل شوی دی .**

⇦ د رسول الله ﷺ تره ابو طالب د بعثت په لسم کال د رمضان په میاشت کې مړ شو د هغه مرګ د رسول الله ﷺ په ژوند کې یوه له لویو صدمو څخه وه . (انساب الاشراف)

⇦ د بعثت په لسم کال د رمضان په میاشت کې ام المومنین حضرت خدیجه رضی الله عنها هم وفات شوه . (دلائل النبوة للبیهقي)

⇦ د هجرت په اول کال د رمضان په میاشت کې رسول الله ﷺ حضرت سید الشهداء حمزة ❾ ته یو بیرغ جوړ کړو او د شپېتو کسانو صحابه وو سره یې په یوه سریه کې ولېږلو او دا په اسلام کې اول بیرغ وو .

⇦ د اسلامي تاریخ تر ټولو د لوړ شان لرونکې غزا په همدې میاشت کې وه چې د اسلام نوم یې په بې مثاله ډول باندې روښان کړو چې هغه غزوة بدر الکبری وه پوره تفصیل یې زمونږ په کتاب (د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دریمه برخه) کې تېر شوی دی .

⇦ د بدر دا غزوة د هجرت په دوهم کال د رمضان د میاشتې په اولسمه نېټه وه .

⇦ د هجرت په دوهم کال د رمضان په میاشت کې جهاد او زکات فرض شول .

⇦ د هجرت په دوهم کال د رمضان په میاشت کې د رسول الله ♈ مبارکه لور او دحضرت عثمان ❾ مېرمن حضرت رقیة رضی الله عنها وفات شوه . (طبقات ابن سعد)

⇦ د هجرت په دریم کال د رمضان په میاشت کې حضرت حسن ❾ تولد شو . (تاریخ بغداد)

⇦ د هجرت په دریم کال د رمضان په میاشت کې رسول الله ♈ د حضرت زینب بنت خزیمة بنت الحارث رضی الله عنهاسره (چې ورته ام المساکین ویل کېدل) واده وکولو . (الطبقات الکبری لابن سعد)

⇦ د هجرت په پنځم کال د رمضان په میاشت کې د حضرت عائشې رضی الله عنها د پاکي د ښکاره کولو لپاره د سورت النور آیتونه نازل شول. (البدایة و النهایة)

⇦ د هجرت په شپږم کال د رمضان په میاشت کې سریة زید بن حارثه ❾ وه قصه یې په تفصیل سره (د اسلامي تاریخ له پانو څخه) کتابونو کې تېره شویده .

⇦ د هجرت په آتم کال د رمضان په میاشت کې د اسلام په تاریخ کې لویه فتح (د مکې فتح) واقع شوه رسول الله ♈ د رمضان په لسم د مدینې منورې نه ووتلو او په اولسم د رمضان مکې مکرمې ته ننوتلو . (سیرة ابن هشام)

⇦ د هجرت په آتم کال د رمضان په ۲۵ باندې حضرت خالد بن ولید ❾ د څه کسانو سره ولېږل شو چې العزى بت مات کړي. (طبقات ابن سعد)

⇦ د هجرت په نهم کال د رمضان په میاشت کې رسول الله ♈ د تبوک د غزا نه را وګرځېدو دا هغه غزا وه چې رسول الله ♈ پکې د خپلو ملګرو سره ۵۰ ورځې په سفر وو په رجب کې تللي وو او په رمضان کې را وګرځېدل (الرحیق المختوم)

⇦ د هجرت په ۵۸ کال د رمضان په میاشت کې ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها وفات شوه .

⇦ د هجرت په ۹۲ کال د رمضان په میاشت کې اندلس د مسلمانانو په لاس فتح شو .

⇦ د هجرت په ۱۸۱ کال کې د رمضان په میاشت کې امام عبد الله بن مبارک رحمه الله وفات شو .

⇦ د هجرت په ۲۵٦ کال کې د رمضان په میاشت کې حضرت امام بخاري رحمه الله وفات شو .

# د رمضان فضیلت

⇦ پدې میاشت کې شیطانان تړل کیږي .

حضرت ابو هریره ❾ روایت کړی دی چې رسول الله ♈ فرمایل :

کله چې د رمضان میاشت شي د جنت دروازې خلاصې شي او د دوزخ دروازې بندې شي او شیطانان وتړل شي .

⇦ د رمضان د فضائلو څخه یو دادی چې همدا میاشت الله ➤ د روژې لپاره خاصه کړه چې یو د قدر وړ او الله ➤ ته خوښ عبادت دی .

⇦ پدې میاشت کې د روژې په اړه د حضرت ابي هریره ❾ په حدیث کې رسول الله ♈ فرمایي :

هغه څوک چې دا میاشت روژه په ایمانداری او صرف د الله ➤ د رضا د حصول لپاره ونیسي الله ➤ به هغه ګناهونه ورته معاف کړي چې کوم ده مخکې کړي او هغه چې دی یې وروسته کوي . (صحیح البخاري)

په رمضان کې یوه شپه تر زرو میاشتو غوره ده .

ابو هریره ❾ فرمایي کله چې رمضان راغلو رسول الله ♈ و فرمایل :

قد جاءكم رمضان، شهر مبارك، افترض الله عليكم صيامه، تفتح فيه أبواب الجنة، وتغلق فيه أبواب الجحيم، وتغل فيه الشياطين، فيه ليلة خير من ألف شهر، من حُرِم خيرها فقد حُرِم ) (النسائي)

ترجمه : تاسې ته رمضان راغلو مبارکه میاشت ده الله ➢ پکې روژه نیول فرض کړي دي پدې کې د جنت دروازې خلاصیږي او د دوزخ دروازې پکې بندیږي پدې میاشت کې شیطانان ترل کیږي او پدې کې یوه شپه ده چې تر زرو میاشتو غوره ده څوک چې ددې د خیر نه محروم شول هغه محروم شول (له هر خیر نه) .

د حضرت ابي هریره ❾ نه روایت دی چې رسول الله ♈ فرمایل :

من قام لیلة القدر إیمانا واحتسابا غفر له ما تقدم من ذنبه ومن صام رمضان إیمانا واحتسابا غفر له ما تقدم من ذنبه ومن صام رمضان إیمانا واحتسابا غفر له ما تقدم من ذنبه (صحیح بخاري)

ترجمه : څوک چې د قدر په شپه د ایمان او یقین سره په عبادت و دریږي الله ➢ ورته ټول ګناهونه معاف کوي چا چې د ښه ایمان او یقین سره روژه ونیوله ټول تېر ګناهونه به ورته و بښل شي چا چې د ښه ایمان او یقین سره روژه ونیوله ټول تېر ګناهونه به ورته و بښل شي.

⇦ د رمضان په میاشت کې دعا قبلیږي.

د حضرت ابي هريره ❾ نه روايت دى هغه فرمايي رسول الله ♈ فرمايل :

**إن لله عتقاء في كل يوم وليلة لكل عبد منهم دعوة مستجابة (اخرجه احمد)**

ترجمه : د الله ➢ لپاره په هره شپه او ورځ (د رمضان) کې داسې خلک وي چې الله ➢ يې ازادوي په دوى کې د هر انسان دعا قبليږي .

د حضرت ابي هريره ❾ څخه روايت دى چې رسول الله ♈ فرمايل :

ثلاثة لا ترد دعوتهم الصائم حتى يفطر والإمام العادل ودعوة المظلوم) (صحيح ابن حبان)

درى کسان دي چې د هغوى دعا نه رد کيږي د روژه لرونکي ترڅو يې چې روژه ماته کړې نه وي ، عادل امام او مظلوم انسان .

⇦ په رمضان کې عمره د حج ثواب لري

د حضرت ابن عباس ❾ څخه روایت دی رسول الله ﷺ یوې انصاري ښځې ته فرمایل :

**فإذا كان رمضان اعتمري فيه؛ فإن عمرةً فيه تعدل حجة (اخرجه البخاري فی الحج)**

ترجمه : کله چې رمضان شو په هغه کې عمره وکوه بېشکه په رمضان کې عمره د حج برابر ثواب لري .

امام نووي رحمه الله فرمايي مطلب يې دادی چې د يو حج ثواب لري او د رمضان عمره او يو حج په هرڅه کې سره برابر نه دي.

⇦ په رمضان کې د جنت دروازې خلاصېږي او د دوزخ دروازې تړل کيږي .

⇦ د رمضان په مياشت کې خيرات کول تر بل هروخت نه غوره دي

⇦ د رمضان په مياشت کې د عبادتونو ثوابونه زياتيږي د نفلو ثواب پکې د فرضو برابر کيږي .

# د روژې فضیلت

- په روژه کې ملائکې د روژه لرونکي لپاره تر هغه وخته پورې بښنه غواړي ترڅو چې هغه خپله روژه ماته کړې نه وي.
- د روژه لرونکي سړي د خولې بوی الله تعالی ته له مسکو نه محبوب دی .
- د نېکو عملونو ثوابونه ملائکې ورکوي لکن روژه الله ﷻ خپل ځان ته خاصه کړې ده او په خپله یې اجر ورکوي.
- د جنت یوه دروازه ده باب الریان ورته ویل کیږي صرف روژه ساتونکي خلک به له هغه دروازې څخه جنت ته ننوزي او چې کله دوی ننوزي بیا به بنده شي .
- د روژې د ثواب هېڅ اندازه نشته الله ﷻ به وربانديې لوی ثواب ورکوي .
- د روژه لرونکي لپاره دوه خوشحالیانې دي یوه خوشحالي یې دهغه وخت ده چې کله روژه ماتوي او بله خوشحالي یې د هغه وخت ده چې کله د خپل رب سره مخامخ کیږي.
- روژه به د خپل ساتونکي (روژه لرونکي) لپاره په قیامت کې شفاعت کوي.

⇦ روژه له اور نه خپل ساتونکی داسې ساتي لکه سپر (ډال) چې له تورې نه ساتل کوي.

⇦ روژه په مسکینانو د ترحم سبب کیږي کله چې انسان خپله وږی شي نو د وږي له حال نه به خبر شي.

## د روژې فرض کېدل

روژه د هجرت په دوهم کال مکې مکرمې ته د قبلې د را ګرځېدلو نه تقریباً دوه هفتې وروسته فرض شوه او د رمضان میاشت د روژې لپاره خاصه کړل شوه او په شعبان کې آیت نازل شو :

سورة بقرة آية ١٨٥

شَهۡرُ رَمَضَانَ ٱلَّذِيٓ أُنزِلَ فِيهِ ٱلۡقُرۡءَانُ هُدٗى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنَٰتٖ مِّنَ ٱلۡهُدَىٰ وَٱلۡفُرۡقَانِۚ فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ ٱلشَّهۡرَ فَلۡيَصُمۡهُۖ وَمَن كَانَ مَرِيضًا أَوۡ عَلَىٰ سَفَرٖ فَعِدَّةٞ مِّنۡ أَيَّامٍ أُخَرَۗ يُرِيدُ ٱللَّهُ بِكُمُ ٱلۡيُسۡرَ وَلَا

يُرِيدُ بِكُمُ ٱلۡعُسۡرَ وَلِتُكۡمِلُواْ ٱلۡعِدَّةَ وَلِتُكَبِّرُواْ ٱللَّهَ

عَلَىٰ مَا هَدَىٰكُمۡ وَلَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُونَ ١٨٥

ترجمه : میاشت د روژې هغه میاشت ده چې نازل کړی شوی دی په دې کې قران چې هدایت دی د پاره د خلقو او دلیلونه دي ښکاره چې لاره ښيي او بېلوونکي د حق او باطل دي نو هرڅوک چې و مومي له تاسې دا میاشت نو ضروري ده چې روژه ونیسي د هغې او هغه څوک چې وي نا جوړه یا په سفر وي نو په ده باندې دي په شمار نیول د نورو ورځو اراده لري الله په تاسې د اسانتیا او اراده نه لري په تاسې باندې د سختي او له پاره ددې چې پوره کړئ تاسې په شمار او چې د لویي سره یاد کړئ الله پدې چې هدایت یې کړی دی تاسې ته او د پاره ددې چې تاسې شکر وباسئ .

# د روژې حکمتونه

## ۱. تقوی

د روژې په نیولو سره په انسان کې تقوی راځي پدې اړه الله تعالی فرمايي :

سورت بقرة آية ۱۸۳

يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ كُتِبَ عَلَيۡكُمُ ٱلصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُونَ ١٨٣

ترجمه :ای هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو) فرض کړی شوې ده په تاسې باندې روژه لکه چې فرض کړل شوېده په هغو کسانو چې پخوا له تاسې څخه وو لپاره ددې چې تاسې له ګناهونو څخه ځان وساتئ او پرهېزګاران شئ .

په پورتني آيت کې الله تعالی مومنانو ته و فرمايل چې په تاسې باندې روژه ددې لپاره فرض کړل شوه ترڅو تاسې تقوی لرونکي شی (ترڅو په تاسې کې تقوی راشي) مطلب يې دا دی چې روژه په انسان کې تقوی را پيدا کوي او دا ډېره لويه خبره ده .

او په ټولو عباداتو کې لوی حکمت همدا دی چې په انسان کې تقوی راشي الله ﷻ فرمایي :

سورة البقرة آیة ۲۱

يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱعۡبُدُواْ رَبَّكُمُ ٱلَّذِى خَلَقَكُمۡ وَٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُونَ ۝٢١

ترجمه : ای خلقو عبادت وکړئ د رب خپل هغه (رب چې) پیدا کړي ئي یی تاسې او هغه کسان چې وو پخوا له تاسې نه د پاره ددې چې تاسې ځان وساتئ له اور نه او پرهېزګاران شئ .

په پورتني آیت کې الله تعالی بندګانو ته حکم کوي چې دوی دې عبادت وکوي ترڅو په دوی کې تقوی را پیدا شي .

### ۲. صبر

په روژه کې بل حکمت مسلمان انسان ته د صبر موقع په لاس ورکول دي چې کله انسان د الله ﷻ د رضا لپاره د ډیرې سختې تندې سره سره بیا هم اوبو څخه پرهیز کوي او نه یې څښې پدې سره الله ﷻ هغه ته اجر ورکوي.

په روژه کې د سختې په تېرولو سره په انسان کې د صبر ماده لا نوره هم کلکه کیږي او پخیږي او په کوم انسان کې چې د صبر ماده پخه شي هغه پوره انسان شي.

### ۳. شکر

د روژې بل حکمت انسان ته هره ورځ د سختې ورځې د تېرېدو وروسته په نعمتونو باندې د شکر وخت ورکوي او مومن انسان چې په ماښام کې د الله ﷻ د نعمتونو څخه مزه واخلي نو د الله ﷻ شکر وکوي او څوک چې د الله تعالی شکر وکوي له یوه پلوه الله ﷻ ترینه راضي کیږي او له بله پلوه الله تعالی ورته په نعمتونو کې زیادت راولي.

## ٤. د قرباني جذبه

روژه په انسان کې دا وس پیدا کوي چې کله ضرورت شي دی خپل خواهشات ورته قربان کړلی شي کله چې یو انسان په سره ګرمي کې په سخته ورځ کې مکمله ورځ د الله ﷻ د رضا لپاره د اوبو او خوراک نه پرهیز وکولی شي نو چې کله ده ته ضرورت شي دی خپل خواهشات قربان کولی شي ددې لپاره چې دا د قرباني عادت د انسان په طبیعت کې ښه پوخ شي روژه ددې لپاره بهترینه او عملي لاره ده .

## ٥. د نفس پاکي

انسان له دوو بنیادي شیانو څخه جوړ دی ١. روح ٢. بدن مونږ چې کوم شیان خورو او څښو دا ټول زمونږ د بدن تقاضې دي او ګټه یې هم زمونږ بدن ته رسیږي زمونږ د وجود بل اهم جز (روح) په خوراک او څښاک نه تازه کیږي د هغه هم تصفیې او پاکې ته ضرورت کیږي دهغه د تصفیې لپاره روژه بهترینه لاره ده او همدا کار په سمه توګه کولی شي .

## ٦. د زيات اجر مستحق کېدل

په روژه کې بل لوی حکمت دادی چې الله ➤ انسان دېته جوړوي چې هغه د لوی اجر مستحق شي د حضرت ابي هريرة ❾ په يو حديث کې رسول الله ♈ فرمايي : بېشکه ستاسې رب فرمايي چې ستاسې د کوم نېک عمل ثواب تر ۷۰۰ چنده پورې زياتېدلی شي لکن روژه صرف زما لپاره ده او زه به دهغې اجر ورکوم يعنې الله ➤ چې د کوم شي په اړه وفرمايي چې ددې اجر زه په خپله ورکوم د ملائکو په وسيله يې نه ورکوم نو مطلب يې دادی چې لوی اجر دی .

## ٧. د بدلون امکان ښکاره کول.

د روژې په حکمتونو کې يو لوی حکمت دادی چې الله تعالی خلکو ته ښکاره کړي چې په خلکو کې هر ډول بدلون راوستل ممکن دي که مونږ موجوده دور ته وګورو کله کله مسلمانان وايي دا فلان ناروا کار اوس ډېر عام شوی دی ددې مخه نيول ممکن نه دي ددې خلکو عادت اوس ددېنه را اړول مشکل دي .

الله ➤ په کال کې يو ځل ښکاره کوي چې سمې لارې ته ددې ټولو خلکو را اوښتل ممکن دي لکه څنګه

چې دروژې میاشت را داخله شي جوماتونه له مونځ کونکو څخه ډک شي د اکثرو خلکو نېکو ته مخه شي بد عملونه کم او یا بالکل ورک شي همدارنګه هغه کسان چې د سګریټو او نورو نشه یي توکیو معتاد وي په عامو ورځو کې چې د دوو ساعتونو لپاره خپله نشه نشي پرېښودلی په روژه کې یې ټوله ورځ او حتی ځینې خو یې لا ټوله میاشت پرېږدي دا ټول مثالونه مونږ ته دا ښکاره کوي چې ددې ټولو خلکو دا بد حالتونه ښو حالتونو ته بدلیدل ممکن دي لکن توجه غواړي ترهرڅه له مخه چې مونږ په خپلو عملونو کې فکر وکوو مونږ ته به په خپله هم ډېر فرق په خپلو عملونو کې ښکاره شي د تلاوت کول، پنځه وخت جومات ته تلل د ځینو لپاره صرف د روژې اعمال دي او دا هم د روژې له حکمتونو څخه یو دی .

## ۸. د الله د نعمتونو یاد

کله چې انسان د روژې په اوږده ورځ کې د سختې تندې او سختې لوږې احساس وکوي نو د هغه کسانو د حال نه خبر شي بلکه په عملي توګه هغه حالت ویني چې ډېر غریبان یې د خوراک او څښاک د نشت والي له امله زغمي نو پدې سره د هغه نعمتونو قدر ښه ورته واضح شي چې الله ﷻ ده ته ورکړي وي او په ورځني ژوند کې دی ترینه لذت اخلي او د همدې نعمتونو د زیاتوالي له امله

کله انسان په غفلت کې وي لکن چې کله رمضان وربانديږ راشي او د روژې په اوږده ورځ کې ددې نعمتونو څخه د لذت اخستلو نه بند کړل شي نو دی شکر وېستلو ته تيار شي .

همدارنګه نعمتونه صرف د خوراک او څښاک شيان نه دي بلکه په رمضان کې اکثر هر مسلمان پدې هم شکر وباسي چې دی يې مسلمان پيدا کړی دی او ده ته يې د روژې نيولو توفيق ورکړی دی او ده ته يې هدايت کړی دی او تر خوراک او څښاک نه لوی نعمت خو دا دی چې ترديږ روژې پورې مونږ ژوندي يو سره ددې چې د تېرې روژې نه تر اوسه پورې الله ﷻ څومره کسان واخيستل او مونږ ته يې لا تر اوسه پورې مهلت راکړو او ژوندي يې وساتلو .

ددې ټولو سربېره الله ﷻ انسان ته جوړ بدن ورکړی دی چې روژه نيولی شي په دنيا کې داسې هم ډېر کسان دي چې د هغوی زړه غواړي چې روژه ونيسي لکن پداسې بيماري باندې آخته وي چې نشي کولی روژه ونيسي حضرت يونس بن عبيد رحمه الله ته يو کس راغلو د غربت نه يې شکايت ورته کولو ده ورڅخه پوښتنه کوله دا يوه سترګه دې په سل درهمه (د سرو زرو روپۍ) خرڅوې؟ هغه کس ورته ډېر په جدې توګه انکار وکولو ورته ويل يې نه ... دهغه مطلب دا وو چې زه ړوند وم بيا په زه سل درهمه څه کړم؟ بيا ده رحمه الله ورته

وويل نو ښه ده دا لاس دې په سل درهمه خرڅوې؟ هغه کس ورته بيا وويل ......... نه بيا ده رحمه الله ورته وويل دا يوه پښه دې په سل درهمه خرڅوې؟ هغه کس ورته وويل نه .. بيا ده رحمه الله ورته وويل ستا په ځان کې الله ﷻ تا ته تر زرګونو درهمو څخه زيات دولت درکړی دی او بيا هم ته د غربت نه شکايت کوې؟ (اصلاح الامة ج ٥)



# روژه په دری ډوله ده

لمړی فرض روژه

## ۱. د رمضان روژه

د فرضیت دلیل یې مخکې هم تېر شول الله تعالی فرمایي :

سورة بقرة آیة ۱۸۳

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ كُتِبَ عَلَيۡكُمُ ٱلصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُونَ ١٨٣

ترجمه : ترجمه :ای هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو) فرض کړی شوې ده په تاسې باندې روژه لکه چې فرض کړل شوېده په هغو کسانو چې پخوا له تاسې څخه وو لپاره ددې چې تاسې له ګناهونو څخه ځان وساتئ او پرهېزګاران شئ .

# ۲. د رمضان د روژې قضاء

چې د کوم عذر له امله څوک روژه وخوري بل وخت به ددې قضايي را ګرځوي پدې اړه الله ➢ فرمايي :

سورة البقرة آية ۱۸٥

مَن شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ وَمَن كَانَ مَرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ

ترجمه : نو هرڅوک چې و مومي له تاسې دا مياشت نو ضروري دې روژه ونيسي د هغې او هغه څوک چې وي نا جوړه يا په سفر وي نو په ده باندې دي په شمار نيول د نورو ورځو

# ۳. د حاجي متمتع او قارن روژه

(چې د قرباني وس ونلري)

هغه قارن او متمتع حاجي (دواړه د حج ډولونه دي) چې د قرباني وس ونلري هغه به لس ورځې روژه نيسي ترتيب يې الله تعالى په قران کريم کې ښودلى دى الله ➢ فرمايي :

سورة البقرة آية ۱۹٦

فَمَن تَمَتَّعَ بِٱلۡعُمۡرَةِ إِلَى ٱلۡحَجِّ فَمَا ٱسۡتَيۡسَرَ مِنَ ٱلۡهَدۡيِۚ فَمَن لَّمۡ يَجِدۡ فَصِيَامُ ثَلَٰثَةِ أَيَّامٖ فِي ٱلۡحَجِّ وَسَبۡعَةٍ إِذَا رَجَعۡتُمۡ

ترجمه : پس هر چا چې نفع واخيسته په عمرې سره حج ته (دواړه يې سره يو ځاى كړل په احرام كې) نو واجب ده په ده باندې هغه قرباني چې ده ته اسانه وي بيا هر چا چې ونه مونده هديه نو بيا په ده باندې واجب ده روژه د دريو ورځو په حج كې او اوه ورځې نورې كله چې له حج نه را وګرځي ..

په پورتني آيت كې صرف د متمتع حكم دى لكن شيخ الشنقيطي او نور علماء فرمايي:

(واعلم أن من يعتدّ به من أهل العلم أجمعوا على أن القارن يلزمه ما يلزم المتمتع من الهدي، والصوم عند العجز عن الهدي) (مسند الامام الشنقيطي)



# ٤. په حج کې د سر خريلو کفاره (اختياري)

(چې د کوم عذر له امله تر قرباني کولو وړاندې وخريل شي)

کله چې حاجي د ډېر خېږن والي او يا کوم بل عذر له امله تر قرباني وړاندې خپل سر و خريي نو د هغه کفاره دريو مسکينانو ته فديه ورکول او يا درى ورځې روژه نېول او يا د يوه پسه (ګډ) قرباني کول دي او که د فديې ورکولو او يا ګډ صدقه کولو وس يې نه وي نو بيا روژه وربانديې لازمه ده .

پدې اړه الله ﷻ فرمايي :

سورة البقرة آية ١٩٦

وَلاَ تَحْلِقُواْ رُءوسَكُمْ حَتَّىٰ يَبْلُغَ ٱلْهَدْىُ مَحِلَّهُ فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مّن رَّأْسِهِ فَفِدْيَةٌ مّن صِيَامٍ أَوْ صَدَقَةٍ أَوْ نُسُكٍ

ترجمه : او تاسې تر هغه وخته پورې خپل سرونه مه خريئ ترڅو چې مذبوحه د حلالې ځاى ته نه وي رسېدلې نو هرڅوک چې لتاسې نه ناجوړه وي او يا دده په سر کې ده ته څه ضرر يا مشکل وي (نو هغه د سر و خريي) او لازمه ده په ده باندې فديه له روژې څخه يا له خيراته او يا له حلالې .

حضرت کعب بن عجرة ❾ فرمايي زه د حج په وخت کې رسول الله ﷺ ته پداسې حالت کې راغلم چې سپږې مې په مخ را تويدلې (له ويښتو نه) رسول الله ﷺ راته وويل ستاسې داسې حال دى لتا سره د خيرات کولو لپاره يو پسه نشته؟ ما ورته وويل نه ... بيا يې راته وويل درى ورځې روژه ونيسه او يا شپږو مسکينانو ته نيمه نيمه پيمانه خوراک ورکړه او سر د وخريه .

# ٥. په حرم کې د ښکار وژلو کفاره (اختياري)

هغه څوک چې په حرم کې ښکار مړ کړي هغه به ددې کفاره ورکوي کفاره يې يا د وژل شوي شي د قيمت خيرات کول دي په کوم ځاى کې چې وژل شوى په همدې ځاى کې به ددې ښکار چې ژوندى وي قيمت معلوم کړي او پدې اړه به په هغه علاقه کې اوسيدونکي دوه کسان حاکمان کړي چې هغوى په نرخونو ښه پوهيږي او هم د عدالت خاوندان وي يا خو دا کفاره او يا مسکينانو ته فديه ورکول او يا روژه نيول دي پدې اړه ا لله فرمايي :

سورة المائدة آية ٩٥

يَـٰأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءامَنُواْ لاَ تَقْتُلُواْ ٱلصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُمٌ وَمَن قَتَلَهُ مِنكُم مُّتَعَمّداً فَجَزَاء مّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ ٱلنَّعَمِ يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ مّنْكُمْ

هَدْياً بَـٰلِغَ ٱلْكَعْبَةِ أَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسَـٰكِينَ أَو عَدْلُ ذَٰلِكَ صِيَاماً لِّيَذُوقَ وَبَالَ أَمْرِهِ عَفَا ٱللَّهُ عَمَّا سَلَف وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ ٱللَّهُ مِنْهُ وَٱللَّهُ عَزِيزٌ ذُو ٱنْتِقَامٍ

ترجمه : ای هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی (ای مومنانو) مه وژنئ تاسې ښکار حال دا چې تاسې په احرام کې یاست او هرڅوک چې ووژني ښکار لتاسې څخه په قصد سره نو په ده باندې دی بدل د هغه څه چې ده وژلي وي له چارپایانو څخه چې حکم به کوي په هغه سره دوه خاوندان د عدل (انصاف) له تاسې ځني (ای مسلمانو) پداسې حال کې چې هغه د نذر په توګه ورسول شي کعبې ته یا پرې کفاره ده طعام د مسکینانو یا په ځای د هغه روژه نیول دي لپاره ددي چې و څکئ سختي د عمل خپل عفوه کړې ده الله له هغه شي چې پخوا تیر شوي دي او هغه چې بېرته را وګرځېدو ښکار کولو ته په احرام کې نو بدل به واخلي الله له ده څخه الله قوي او غالب دی څښتن د بدل اخستلو دی .



# ٦ د قتل خطاء كفاره

## دوه مياشتې روژې (مسلسلې)

كله چې د يو مسلمان شخه بل مسلمان په خطا سره قتل شي نو هغه به ددې كفاره وركوي او كفاره يې يو غلام ازادول دي او كه دا ممكن نه وو او يا يې وس نه وو نو بيا به دوه مياشتې مسلسلې روژې نيسي پدې اړه الله ﴿ فرمايي :

سورة النساء آية ٩٢

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ أَن يَقْتُلَ مُؤْمِناً إِلاَّ خَطَئاً وَمَن قَتَلَ مُؤْمِناً خَطَئاً فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ إِلاَّ أَن يَصَّدَّقُواْ فَإِن كَانَ مِن قَوْمٍ عَدُوّ لَّكُمْ وَهُوَ مْؤْمِنٌ فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَإِن كَانَ مِن قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مّيثَاقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ وَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةً فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ تَوْبَةً مّنَ ٱللَّهِ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيماً حَكِيماً

ترجمه :او نه ښايي هيڅ مؤمن ته دا چې قتل كړي بل مؤمن مگر په خطا سره او هرڅوك چې مړ كړي كوم مؤمن په خطا سره نو په قاتل باندې دي ازادول د غاړې (د غلام) او بل ديت دى سپارلى شوى وارثانو د قتل شوي ته مگر دا كه معاف كړي پس كه وو د اقتل شوى له دښمنانو ستاسې شخه او حال دا چې دا وژل شوى مومن وو نو بيا په قاتل

باندې لازم دي د مسلمان (مریي) ازادول او که د ا قتل شوی له داسې قوم نه وو چې ستاسې او د هغوی په مینځ کې تړون شوی وو نو بیا یو دیت دی چې سپارل کیږي به وارثانو د مقتول ته او ازادول د یوې غاړې مومنې دي پس هرڅوک چې پیدا نه کړي مریی او یا دومره مال چې غلام وربانديې واخلي نو په ده باندې روژه نیول دي د دوو میاشتو چې پر له پسې وي لپاره د قبلولو د توبې له طرفه د الله او الله ښه عالم دی د حکمت واله دی .

په پورتني آیت کې چې د قتل خطاء لپاره کومه کفاره تعین شویده دا به مسلسلې دوه میاشتې وي چې پدې مینځ کې به نه قضایي وي او نه به داسې یوه ورځ پکې وي چې د هغې نیت یې نه وي کړی او نه به پکې یوه داسې ورځ راځې چې په هغې ورځ ده د بل واجب له مخې د روژې نیت کړی وي او که یو داسې کار وشو او یا یوه ورځ قضاء شوه نو دا دوه میاشتې به له سرنه را ګرځول کیږي.

# ۷. د قسم کفاره

دری ورځې روژې (مسلسې)

هغه څوک چې په راتلونکې زمانه کې د کوم شي په اړه قسم وخوري او هغه شی دده د خبرې سره سم نشي نو په ده باندې قسم واوښتو د شریعت په اصطلاح کې دیته حانث وایې نو چې کله انسان حانث شو دی به ددې قسم کفاره ورکوي یې له دریو شیانو څخه یو ورکول وي ۱. یا به لسو مسکینانو ته خوراک ورکوي ۲. یا یو غلام ازادول دي او که دا دواړه یې نشوای پیدا کولی بیا ۳. دری ورځې روژې نیول دي او دا دری ورځې روژې به سر په سر (متصلې) وي پدې اړه الله فرمایي :

سورة المائدة آیة ۸۹

لاَ يُؤَاخِذُكُمُ ٱللَّهُ بِٱللَّغْوِ فِى أَيْمَـٰنِكُمْ وَلَـٰكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا عَقَّدتُّمُ ٱلْأَيْمَـٰنَ فَكَفَّارَتُهُۥٓ إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَـٰكِينَ مِنْ أَوْسَطِ مَا تُطْعِمُونَ أَهْلِيكُمْ أَوْ كِسْوَتُهُمْ أَوْ تَحْرِيرُ رَقَبَةٍ فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَـٰثَةِ أَيَّامٍ ذَٰلِكَ كَفَّارَةُ أَيْمَـٰنِكُمْ إِذَا حَلَفْتُمْ وَٱحْفَظُوٓاْ أَيْمَـٰنَكُمْ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمْ ءَايَـٰتِهِۦ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ

ترجمه :لکن نه نیسي تاسې (په ماتولود) هغه (عهد) سره چې کلک کړي وي تاسې قسمونه نو

کفاره (د ماتولو) ددې (قسم) طعام ورکول دي لسو مسکینانو ته له اوسطی (درجې) د هغه خوړو چې طعام ورکوئ تاسې کورنیو خپلو ته یا جامې ورکول دي دغو لسو مسکینانو ته یا ازادول د (یوې) غاړې دي نو هرڅوک چې ونه مومي دا شیان نو روژه نیول دي د دریو ورځو دا پورته یاد کړل شوي شیان کفاره ده ستاسې د قسمونو کله چې قسم یاد کړئ تاسې بیا وساتئ تاسې قسمونه خپل داسې الله بیانوي تاسې ته آیتونه خپل لپاره ددې چې تاسې شکر و کاږئ په دې نعمت او احسان او شرعي بیان.

حضرت عبد الله ابن عباس ❾ فرمایي : هغه څوک چې په خپل قسم کې پاتې راشي (حانث) شي بیا په ده باندې داسې کفاره لازمه ده لکه څنګه چې په آیت کې ذکر کړل شویده اول به لسو کسانو ته خوراک ورکوي او که دا نشي کولی یو غلام د ازاد کړي او که دا دواړه یې نشوای کولی نو هغه دې بیا درې ورځې مسلسلې روژې ونیسي .

# ٨. د ظهار كفاره

## دوه مياشتې روژه (مسلسل)

ظهار به په تفصيل سره په خپل ځای راشي خو دلته په مختصرو ټكو كې ويل غواړم ظهار ديته وايي چې څوک خپلې ښځې ته وو ايي چې ته په ما باندې لكه زمامور داسې يې (مسائل يې ډېر تفصيل لري) نو پدې صورت كې به دی اوس خپلې ښځې ته نه ور نېږدې كيږي ترڅو يې د ظهار كفاره نه وي اداء كړې اود ظهار په كفاره كې هم دری شيان صحيح دي :

١. تر هرڅه د وړاندې دې يو غلام ازاد كړي.

٢. كه يې دا نشوای كولی نو بيا د دوه مياشتې مسلسلې روژه ونيسي .

٣. او كه يې دا هم نشوای كولی نو بيا دې شپېتو مسكينانو ته خوراک وركړي پدې اړه الله ﷻ فرمايي :

سورة المجادلة آية ٣ او ٤

وَٱلَّذِينَ يُظَـٰهِرُونَ مِن نِّسَائِهِمْ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُواْ فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِّن قَبْلِ أَن يَتَمَاسَّا ذَٰلِكُمْ تُوعَظُونَ بِهِ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ۝ فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِن قَبْلِ أَن

يَتَمَاسَّا فَمَن لَّمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِيناً ذَلِكَ لِتُؤْمِنُواْ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتِلْكَ حُدُودُ ٱللَّهِ وَلِلْكَٰفِرِينَ عَذَابٌ أَلِيمٌ

ترجمه : او هغه کسان چې ظهار کوي له خپلو ښځو نه (هغوی ته مور وايي) بيا له خپلې خبرې نه را ګرځي نو لازم دي په دوی باندې ازادول د يوې غاړې مخکې ددې چې دوی يو بل سره مسه کړي (په جماع سره) په دغه حکم سره تاسې ته پند درکول کيږي او الله په هغه څه چې تاسې يې کوئ ښه خبر دی.

پس هغه کسان چې پيدا يې نه کړو غلام چې ازاد يې کړي او يا دومره پيسې چې غلام وربانديې واخلي نو په هغه باندې لازم دي روژه نيول د دوو مياشتو متصلو مخکې ددې چې دوی يو بل سره مس کړي (په جماع سره) او که څوک ددې وس نه لري په هغه باندې لازمه ده شپېتو کسانو ته خوراک ورکول دغه د کفارې سپکول تاسې ته ددې لپاره دي چې تاسې ايمان راوړئ په الله او د هغه په رسول او دا احکام حدونه تعين شوي د الله دي او هغه کسان چې کافران دي هغوی لره دردناک عذاب دی .

چې په پورتني آيت کې څه ډول بيان کړل شوي کفاره يې هم په همدې ترتيب ده اول اختيار پکې د غلام د ازادي دی که دا ميسره نه وي نو بيا متصله دوه مياشتې روژه ده او که دا هم نشي

کولی نو بیا شپېتو مسکینانو ته خوراک ورکول دي او دا ټول خپلې مېرمن ته تر نېږدېکت ورانديې لازم دي.

امام قرطبي رحمه الله په خپل تفسیر کې فرمايي چې پدې آيت کې الله تعالى کفاره په ترتيب سره ياده کړې ده او په همدې ترتيب سره لازمه ده تر هرڅه د مخه به يو غلام ازاد کړي که يې دا نشوای کولی نو بیا روژه ده او که چېرته يې د روژې د نیولو طاقت نه وو نو بیا غریبانو ته خوراک ورکول دي .

# ۹. نذر کړل شوې روژه

هغه روژه چې انسان يې په ځان نذر کړي هغه هم په انسان لازمه شي او په هغه ډول وربانديې لازمه شي په کوم ډول يې چې په ځان لازمه کړې وي که مسلسلې وي او که جدا جدا وي الله ➤ د نذر په اړه فرمايي :

سورة الدهر آية ۷

يُوفُونَ بِٱلنَّذْرِ وَيَخَٰفُونَ يَوْماً كَانَ شَرُّهُ مُسْتَطِيراً

ترجمه : ابرار (نېکان) هغه کسان دي چې دوی وفا کوي په نذر سره (چې دوی پر ځان منلی وي) او دوی ډارېږي له هغې ورځې نه چې شر يې تيت (ښکاره) دی.

د حضرت عبد الله بن عباس ❾ په یو حدیث کې یو روایت دی چې یوې ښځې رسول الله ♈ ته و فرمایل : زما مور وفات شوه او په هغې باندې نذر روژې باندې وې (هغې پر ځان څه روژې نذر کړې وې) زه یې د هغې له لوري ونیسم؟ (مطلب یې دا وو که زه یې ونیسیم د هغې له لوري صحیح کیږي) رسول الله ♈ ورته وفرمایل : هو .. د الله ➢ حق ډیر ددې لائق دی چې باید خلاص کړل شي.



# نفلي روژې

## ١. صيام داود

(د حضرت داود علیه السلام روژه)

د عبد الله بن عمر نه روايت دی رسول الله ﷺ فرمايل :

**إن أحب الصيام إلى الله صيام داود، وإن أحب الصلاة إلى الله صلاة داود، كان ينام نصف الليل ويقوم ثلثه وينام سدسه، وكان يصوم يوماً ويفطر يوماً (رواه البخاري)**

ترجمه : د الله ﷻ په ټولو روژو کې د حضرت داود علیه السلام روژه خوښه ده او په ټولو مونځونو کې هم ورته د حضرت داود علیه السلام مونځ خوښ دی هغه به نیمه شپه ويده کېدو او د شپې په دريمه برخه کې به يې مونځ کولو او په شپږمه برخه کې به بيرته ويده کېدو او يوه ورځ به يې روژه نيوله يوه ورځ به يې نه نيوله .

حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه فرمايي زما په اړه چا رسول الله ﷺ ته ويلي وو چې ما ويل : زما د قسم په الله ﷻ وي ترڅو چې زه ژوندی وم د ورځې به روژه نيسم او د شپې به مونځ کوم . رسول الله ﷺ

ماته وویل : دا خبره تا کړېده؟ (چې ترڅو ژوندی وې هره ورځ به روژه نیسې او د شپې به مونځ کوې) ما ورته وویل هو! دا ما ویلي دي مور پلار مې لتا زار شه .. بیا رسول الله ♈ راته وویل : ټول عمر دا ته نشې کولی روژه هم نیسه او ځینې ورځې یې خوره هم ویده کېږه هم او مونځ هم کوه د هرې میاشتې نه درې ورځې روژه نیسه یوه نیکي په لس چنده ده دا داسې ده لکه ټول کال چې تا روژه نیولې وي حضرت عبد الله بن عمرو ❾ فرمایي : ما ورته وویل : زه ددېنه ښه هم کولی شم رسول الله ♈ راته وویل : نو بیا داسې کوه چې یوه ورځ روژه نیسه او یوه ورځ یې مه نیسه دا د حضرت داود علیه السلام روژه ده او غوره روژه ده ما ورته وویل : زه ددې نه د غوره وس او طاقت هم لرم .. رسول الله ♈ راته وویل ددېنه غوره نشته (رواه البخاري)

# ۲. د محرم د میاشتې روژه

د حضرت ابي هريره ❾ نه روايت دى چې د رسول الله ♈ نه پوښتنه وشوه چې کوم مونځ غوره دى؟ ده وويل هغه مونځ چې د شپې په مينځ کې وي بيا ورته وويل شول چې د رمضان څخه وروسته کومه روژه غوره ده؟ ده و فرمايل : شهر الله المحرّم (رواه البخاري)

په اصل کې په اسلامي دولسو مياشتو کې څلور مياشتې دي چې هغې ته اشهر الحرم ويل کيږي دا په اسلام کې د حرمت او عزت مياشتې دي د اسلام په شروع کې مسلمانانو ته اجازه نه وه چې پدې مياشتو کې جنګ وکوي صرف که له دوى سره څوک جنګ کول غواړي نو دوى له خپل ځان څخه د دفاع په موخه جنګ کولى شي او دا چې پدې مياشتو کې مسلمانانو ته اوس جنګ روا دى او کنه دوه مذهبه دي .

۱. جمهور علماء پدې رايه دي چې دا د جنګ حرمت په اشهر الحُرُم کې اوس نسخ شوى دى ۲. دوهم مذهب دادى چې نه اوس هم پدې مياشت کې مسلمانانو ته اجازه نشته چې په کفارو حمله وکوي او که بل څوک وربانديې حمله کوي نو روا ده چې له هغوى سره جنګ وکوي د اشهر الحرم په اړه الله ➤ فرمايي :

سورة التوبة آية ٣٦

**إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِنْدَ اللَّهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْراً فِي كِتَابِ اللَّهِ يَوْمَ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ مِنْهَا أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ذَلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ فَلا تَظْلِمُوا فِيهِنَّ أَنْفُسَكُمْ**

ترجمه :بېشکه چې شمار د میاشتو (چې معتبر دی) په نزد د الله کې دولس میاشتې دي په کتاب د الله (لوح محفوظ) کې هغه ورځ (وخت) چې پیدا کړي یې دي اسمانونه او زمکه د هغو له جملې څخه څلور میاشتې محرمې دي دغه دین دی سم نو مه کوئ ظلم په ځانونو خپلو پدې میاشتو کې .

او دا چې دا اشهر الحرم کومې میاشتې دي رسول الله ﷺ یې تفصیل کړی دی چې دا څلور میاشتې دي دری سره یو ځای دي او یوه ترېنه بېله ده :

١. ☸ ٢. ♉ ٣. ♌ ٤. ❖

پدې څلورو میاشتو کې بیا د علماوو اختلاف دی چې کومه یوه پکې غوره ده اکثر علماء پدې رایه دي چې په دې څلورو کې غوره میاشت د محرم میاشت ده امام نسائي د حضرت ابي ذر ❾ یو حدیث نقل کړی دی هغه فرمایي : ما له رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکوله کومه شپه غوره ده او کومه میاشت غوره ده ؟ ده راته وویل غوره شپه د شپې مینځ دی او په میاشتو کې غوره هغه حرم

میاشت ده چې تاسې ورته محرم وایاست (په حدیث کې د ټولو نه د غوره میاشت مطلب وروسته له رمضان څخه دی یعني له رمضان څخه وروسته غوره میاشت د محرم ده)

په مسلم کې د حضرت ابي هریره ❾ نه روایت دی رسول الله ♈ فرمایل : د رمضان نه وروسته غوره روژه د محرم ده او په مونځونو کې تر فرضو وروسته غوره مونځ د شپې دی .

# ۳. د اشهر الحرم (♉ ♉ ♈ ❖ ) روژه

په نفلي روژو کې دریم ډول غوره روژه د حرم د څلورو میاشتو روژه ده په یو حدیث کې د حضرت مجیبة الباهلي ❾ نه روایت دی چې هغه فرمایي رسول الله ♈ فرمایل : .... **و صم اشهر الحرم** (یعني د حرم د میاشتو روژه ونیسه ) رواه أبو داود حدیث نمبر (2420)

امام نووي رحمه الله پدې اړه فرمایي : زمونږ د ټولو ا صحابو څخه نقل شوي دي چې د حرم په څلورو میاشتو کې روژه غوره ده او که په چا باندې نه سختیږي نو کوښښ د وکوي چې روژه پکې ونیسي .

امام ابن رجب رحمه الله فرمايي : په پخوانيو کې داسې کسان دي چې هغوی به د حرم څلور واړه مياشتې په روژه تېرولې لکه ابن عمر، الحسن البصري، أبو إسحاق السبيعي او حضرت سفيان الثوري رحمه الله به فرمايل : زما خوښېږي چې د حرم څلور واړه مياشتې روژه ونيسم .

## ٤ . د شوال شپږ ورځې روژه نېول .

کله چې د رمضان مياشت تېره شي نو ورپسې د بلې مياشتې (شوال) نه شپږ ورځې روژه نيول مستحب دي پدې اړه رسول الله ﷺ فرمايي :

**مَنْ صَامَ رَمَضَانَ ثُمَّ أَتْبَعَهُ سِتًّا مِنْ شَوَّالٍ كَانَ كَصِيَامِ الدَّهْرِ**

ترجمه : چا چې د رمضان روژه ونيوه او بيا يې د شوال شپږ ورځې ورپسې کړې دا داسې ده لکه ده چې ټوله زمانه روژه نيولې وي. (صحيح مسلم)

➢ ددې حديث په تفسير کې امام نووي رحمه الله فرمايي چې څوک د شوال شپږ ورځې روژه ونيسي دا څکه داسې ده لکه ده چې ټوله زمانه روژه نيولې وي چې د هرې نيکي اجر الله انسان ته يو په لسه ورکوي نو چې کله انسان د رمضان ٣٠ روژې ونيسي نو دا چې په لسو کې ضرب کړې ٣٠٠ شي نو داسې شي لکه لس مياشتې يې چې روژه نيولې وي او چې

٦ ورځې نورې شي دا به داسې شي لکه چې دوه میاشتې یې نوره روژه نیولې وي نو لس او دوه دا ۱۲ میاشتې دا پوره کال شو نو هر کال چې د رمضان میاشت روژه نیسي او بیا ورپسې ٦ نورې د شوال نیسي نو الله ﷻ ورته دومره ثواب ورکوي لکه ټول کال یې چې روژه نیولې وي.

حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن مبارک رحمه الله څخه نقل کوي چې د شوال شپږ ورځې روژه په فضل او ثواب کې د رمضان تر روژو پورې پیوست کیږي نو چې څوک دا روژې ونیسي الله ﷻ به ورته د ټول کال د فرض روژې ثواب ورکوي.

په شوال کې ددې شپږو روژو لپاره خاص وخت ندی تعین شوی چې کوم وخت روژه نیونکي ته اسان وي هغه وخت یې دې ونیسي که د شوال په اول کې وي په اختر پسې متصل او که په آخر ددې میاشت کې وي همدارنگه دده اختیار دی که متصل یې سره نیسي او که بیلې بیلې یې نیسي لکن غوره خبره داده چې څنگه اختر تېر شي شروع یې کړي او متصلې یې ونیسي او ختمې یې کړي .

## د شوال د شپږو روژو فایدې

حافظ ابن رجب رحمه الله په شوال کې د شپږو ورځو روژو لپاره یو څو فایدې ذکر کړي دي ستاسې سره یې شریکوم .

١. څوک چې د رمضان نه وروسته په شوال کې شپږ ورځې روژه ونیسي الله ﷻ به ورته د ټول کال د روژې ثواب ورکړي (لکه مخکې چې تېر شول) .

٢. د شوال په میاشت کې شپږ روژې داسې مثال لري لکه د فرض مانځه نه وروسته او یا وړاندې سنت چې لویه فایده یې دا وي که په فرضو کې څه نقصان راغلی وي نو پدې سره پوره کیږي په همدې ډول که زمونږ د رمضان په روژو کې له مونږ نه څه ډول کمزوري راغلې وي نو د شوال په میاشت کې شپږ ورځې روژه به هغه نقصان پوره کړي.

او د قیامت په ورځ چې کله د کوم بنده په فرضو کې نقصان پیدا شي الله ﷻ به یې هغه ورته د سنتو او نفلو نه ور پوره کړي.

٣. تر رمضان وروسته چې څوک په شوال کې روژه ونیسي ددې نښه ده چې دده د رمضان روژه قبوله شویده ځکه چې کله الله ﷻ د کوم بنده نېک عمل قبول کړي د بل نېک عمل کولو توفیق ورکړي نو دا د پخواني عمل د قبول نښه وي همدارنګه چې

څوک کوم نېک عمل وکوي او په هغه پسې کوم بد عمل وکوي دا ددې نښه ده چې الله ﷻ دده نېک عمل نه دی قبول کړی .

٤. هغه کسان چې د رمضان په روژو باندې د ثواب مستحقین شي هغوی ته الله تعالی د اختر په ورځ ثوابونه ورکوي نو د اختر نه وروسته شپږ روژې نورې نیول دهغه نعمت شکریه ده او تردې بل لوی نعمت نشته چې الله ﷻ چاته دهغه ګناهونه ور معاف کړي نو د دومره لوی نعمت شکریه باید په ځای شي .

٥. په دنیا کې ډېر داسې خلک دي چې ددې مبارکې میاشتې د فضیلت نه محروم دي روژې نه نیسي عبادتونه پکې نه کوي هغوی هم همداسې انسانان دي لکن الله ﷻ ورته توفیق نه دی ورکړي دا چې الله ﷻ مونږ ته د پوره میاشتې د روژې نیولو توفیق راکړی دی دا یو لوی نعمت دی او دا شپږ ورځې روژه د همدې نعمت شکر اداء کول دي .



# ٥. د عرفـات د ورځې روژه

(د هغه کسانو لپاره چې په حج کې نه وي)

په نفلي روژو کې پنځم ډول غوره روژه د عرفات د ورځې روژه ده لکن د هغه کسانو لپاره چې هغوی په حج کې نه وي او هغه کسان چې په حج کې وي نو هغوی پدې ورځ باندې د عرفات په میدان کې وي د هغوی په حق کې غوره خبره داده چې هغوی د روژه نه نیسي او هلته د په نورو عباداتو کې کوښښ وکوي حضرت ابو هریره ❾ فرمایي : رسول الله ♈ د عرفات د ورځې د روژې نه په عرفات کې منع کړیده (ابن ماجه) نو هغه کسان چې په حج کې نه وي د هغوی لپاره دا روژه مستحب دهددې ورځې د روژې په اړه د حضرت قتادة ❾ نه روایت دی چې رسول الله ♈ فرمایي :

**صِيَامُ يَوْمِ عَرَفَةَ أَحْتَسِبُ عَلَى اللَّهِ أَنْ يُكَفِّرَ السَّنَةَ الَّتِي قَبْلَهُ وَالسَّنَةَ الَّتِي بَعْدَهُ**

ترجمه : د عرفات د روژې په اړه د الله ➤ نه امید کوم چې د یوه تېر او یا راتلونکي کال د ګناهونو لپاره کفاره شي .

د علماوو له نظره په پورتني حدیث کې چې ښکاره کیږي د عرفات روژه د دوو کلونو د ګناهونو کفاره کیږي دا واړه ګناهونه دي او د لویو

ګناهونو نه ځان ساتل په کار دي او چې کوم شوي وي دهغې بښنه غوښتل دي او هغه کسان چې لوی ګناهونه پرېږدي د ورو ګناهونو کفاره به يې کيږي الله ≺ پدې اړ فرمايي :

سورة النساء آية ٣١

إِنْ تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَنُدْخِلْكُمْ مُدْخَلًا كَرِيمًا

ترجمه : که ځان وساتئ تاسې له لويو ګناهونو څخه چې منع کولی شئ تاسې له هغو نه نو لرې به کړو مونږ له تاسې نه (واړه ګناهونه) ستاسې او ننه به باسي تاسې په ځای د ننوتلو ښه کې .

# ٦. د ذی الحجې اولې ٩ ورځې روژه

په نفلي روژو کې بل ډول غوره روژه د ذی الحجې په مياشت کې د اولو نهو ورځو روژه نيول دي ددې ورځو په اړه رسول الله ♈ فرمايي :

داسې ورځې نشته چې نېک عمل پکې الله ≺ ته ددې ورځو نه زيات محبوب وي صحابه وو پوښتنه وکوله جهاد هم نه؟ رسول الله ♈ ورته و فرمايل جهاد هم نه بغير د هغه صورت نه چې يو انسان

د خپل ځان او مال سره د الله ≺ په لاره كې لاړ شي او بيا هېڅ هم بېرته رانه وړي (البخاري)

امام ابن حجر رحمه الله فرمايي : ددې امله ددې ورځو روژه غوره ده چې روژه هم يو عمل دى (فتح الباري)

د رسول الله ♈ د ځينې بيبيانو څخه نقل شوي دي چې هغوى به د ذى الحجې اولې نه (٩) ورځې د عاشور د ورځې او په هره مياشت كې درى ورځې او د دوشنبې او پنجشنبې روژې نيولې (النسائي)

د حضرت عبد الله بن عباس ❾ نه روايت دى چې رسو ل الله ♈ فرمايل :

هغه ورځ چې الله ≺ پكې حضرت آدم عليه السلام ته بښنه وكوله د ذى الحجې اوله ورځ وه څوك چې پدې ورځ روژه ونيسي الله ≺ به ورته هره گناه معاف كړي.

د ذى الحجې دوهمه ورځ هغه ورځ ده چې پدې ورځ باندې الله ≺ د ما هي په گېډه كې د حضرت يونس عليه السلام توبه قبوله كړه پدې ورځ روژه نيول دومره ثواب لري لكه ټول كال چې څوك د الله ≺ عبادت وكوي او په ټول كال كې د سترگو د رپ برابره گناه ونه كوي.

د ذی الحجې دريمه هغه ورځ ده چې په کومه باندې الله ≺ د حضرت زکريا عليه السلام دعا قبوله کړه ځوک چې پدې ورځ روژه ونيسي الله ≺ به يې دعا قبوله کړي .

د ذی الحجې ځلرمه ورځ هغه ده چې په کومه ورځ حضرت عيسی عليه السلام پيدا شوی دی پدې ورځ چې ځوک روژه ونيسي الله ≺ به غريبي او فقر ترېنه لرې کړي.

د ذی الحجې پنځمه ورځ هغه ده چې په کومه باندې حضرت موسی عليه السلام پيدا شوی دی چې پدې ورځ ځوک روژه نيسي الله ≺ به يې د قبر د عذاب نه وساتي.

د ذی الحجې شپږمه ورځ هغه ده چې په کومه کې الله ≺ د خير ټولې دروازې خلاصوي پدې ورځ چې ځوک روژه نيسي الله ≺ به ورته د رحمت په نظر وګوري او الله ≺ چې چاته د رحمت په نظر وګوري هغه ته عذاب نه ورکوي.

د ذی الحجې اومه ورځ هغه ده چې الله ≺ پکې د دوزخ دروازې بندوي او بيا چې ترڅو لس ورځې نه وي شوې بېرته يې نه خلاصوي پدې ورځ چې ځوک روژه نيسي الله ≺ به ورته دېرش د سختۍ دروازې

بندې کړي او دېرش د اسانۍ دروازې به دده په مخ ور خلاصې کړي .

د ذی الحجې آتمه ورځ د ترویې ورځ ده چې پدې ورځ څوک روژه ونیسي الله ﷻ به داسې خیر ورکړي چې د الله ﷻ نه بغیر به بل څوک وربانديې نه وي خبر .

د ذی الحجې نهمه ورځ د عرفات ورځ ده چې پدې ورځ څوک روژه ونیسي د یو کال تېرو او یو کال راتلونکو ګناهونو لپاره کفاره کیږي او په همدې ورځ باندې دا آیت نازل شوی دی (الیوم اکملت لکم دینکم) .

د ذی الحجې لسمه ورځ د اختر ورځ ده چې پدې کې څوک د الله ﷻ لپاره قرباني وکوي الله ﷻ به یې دده د ټولو ګناهونو لپاره کفاره کړي .

## ٧. د عاشور د ورځې روژه

په نفلو روژو کې بله غوره روژه د عاشور روژه ده د عاشور د روژې په اړه رسول الله ﷺ فرمایي :

**وصيام يوم عاشوراء أحتسب على الله أن يكفر السنة التي قبله**

ترجمه : د عاشور د روژې په اړه زه د الله ﷻ نه هيله کوم چې د يو کال تېر د ګناهونو لپاره به يې کفاره کړي .

د حضرت عبد الله ابن عباس ؓ نه روايت دی کله چې رسول الله ﷺ مدينې منورې ته راغلو يهود يې وليدل چې د عاشور په ورځ يې روژه نيوله پوښتنه يې وکوله چې دا روژه د څه له امله ده؟

دوی ورته وويل دا هغه ورځ ده چې الله ﷻ حضرت موسی عليه السلام او بني اسرائيلو ته د دښمن څخه نجات ورکړو بيا به موسی عليه السلام ددې ورځې روژه نيوله .

بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : زه تر تاسې نه د موسی عليه السلام د متابعت ډېر حقدار يم بيا يې خپله هم روژه ونيوله او صحابه وو ته يې هم د روژې د نيولو امر وکولو . (رواه البخاري)

حضرت علقمه ؓ فرمايي زه به حضرت عبد الله ابن مسعود ؓ ته د يوې روژې نه تر بلې روژې پورې هره ورځ ورتلم بيا مې د عاشور نه بغير په بله ورځ روژه ونه ليدو .

حضرت عبد الله بن عباس ؓ فرمايي : کله چې رسول الله ﷺ د عاشور په ورځ روژه ونيوله او خلکو ته يې هم د روژې د نيولو حکم وکولو نو ورته وويل

شول : یا رسول الله ﷺ دا خو داسې ورځ ده چې یهود یې تعظیم کوي رسول الله ﷺ ورته و فرمایل :

**فإذا كان العام المقبل إن شاء الله صمنا اليوم التاسع**

ترجمه : په راتلونکې کال کې به د نهم د ورځ روژه هم ورسره نیسو **انشاء الله** .

بیا د راتلونکي کال د عاشور تر راتلو وړاندې رسول الله ﷺ وفات شو .

حضرت ابن قیم رحمه الله فرمایي د عاشور د ورځې سره د نهم او یا د یولسم د ورځې روژه نیول مستحب دي . (زاد المعاد)

# ۸. په هره میاشت کې درې ورځې روژه

په هره میاشت کې درې ورځې روژه هم د هغه نفلي روژو څخه ده چې ډېره غوره ده ددې په اړه حضرت ابو هریره رضی الله عنه فرمایي :

ماته مې خپل دوست (رسول الله ﷺ) په دریو شیانو نصحیت کړی دی ۱. د هرې میاشتې نه درې ورځې روژه نیول ۲. د څاښت دوه رکعته مونځ کول ۳.

او دا چې زه به وتر مخکې له ویده کېدلو کوم. (رواه البخاري)

او دا درى ورځو ته ایام البیض وایي او ایام البیض د هرې اسلامي میاشتې دیارلسم ، څوارلسم او پنځلسم دى (البخاري)

پدې اړه رسول الله ﷺ فرمایي :

صیام ثلاثة أیام من کل شهر صیام الدهر وأیام البیض صبیحة ثلاث عشرة وأربع عشرة وخمس عشرة

یعني : د هرې میاشتې نه د دریو ورځو روژه نیول داسې دي لکه د ټول عمر روژه او ایام البیض سحر د دیارلسمې ، څوارلسمې او پنځلسمې دى. (النسائي) (د عربي تاریخ د میاشتې دیارلسمې، څوارلسمې او پنځلسمې ته ایام البیض ددې امله وایي چې پدې شپو کې میاشت ډېره روښانه وي )

ددې حدیث په تفسیر کې علماء کرام فرمایي چې په میاشت کې د دریو ورځو روژه نیول د ټول عمر د روژې سره ددې امله برابره ده چې الله ﷻ انسان ته هره نیکې په لس چنده ثواب ورکوي نو په هره میاشت کې درى روژې داسې دي لکه ټوله میاشت روژه نو داسې په هره میاشت کې درى ورځې روژه لکه د ټول کال روژه داسې ده په همدې ترتیب به د ژوند هر کال روان وي .

د حضرت عبدالله بن عمرو ابن العاص ❾ فرمايي رسول الله ♈ فرمايل : په هره مياشت کې درى ورځې روژه نيول داسې دي لکه د ټول عمر روژه . (متفق عليه)

حضرت موسى بن سلمة رحمه الله فرمايي ما د حضرت عبد الله بن عباس ❾ نه د ايام البيض د روژو په اړه پوښتنه وکوله هغه راته وويل : عبد الله بن عمر به هروخت نيولې . (رواه الطبري)

# ۹. د دوشنبې او پنجشنبې روژه

د نفلي روژو له جملې نه بل ډول غوره روژې د دوشنبې او پنجشنبې روژه ده حضرت اسامة بن زيد❾ ددې روژو په اړه فرمايي ما د رسول الله ♈ نه پوښتنه وکوله چې تاسې په دوشنبې او پنجشنبې دا دوه ورځې هر وخت روژه نيسي؟ رسول الله ♈ راته وويل : ځکه چې پدې دوو ورځو کې الله تعالى ته د بندګانو عملونه وړاندې کيږي او زما د اخوښيږي چې ا لله ته مې په داسې حالت کې عملونه وړاندې شي چې زما روژه وي (رواه احمد)

# ۱۰. د شعبان د مياشتې روژه .

بله له نفلي روژو څخه غوره روژه د شعبان د میاشتې ده .

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمايي رسول الله ♈ به کله دومره روژې نيولې چې مونږ به فکر کاوه چې هغه يې نه خوري او کله به يې دومره وخت خوړلې چې مونږ به ويل چې نورې روژې نه نيسي او ما رسول الله ♈ نه وو ليدلې چې مکمله مياشت يې روژه نيولې وي بغير د رمضان څخه او په ټولو (۱۱ مياشتو) کې يې تر ټولو نه زياتې روژې په شعبان کې نيولې . ( رواه البخاري)

په بل حديث کې حضرت عائشه رضی الله عنها فرمايي : ما رسول الله ♈ ونه ليدو چې تر شعبان څخه يې زياتې روژې په بله مياشت کې نيولې او بيا به يې ويل : څومره نېک عمل چې کولی شئ نو ويې کوئ الله ➤ نه ستړی کيږي تردې چې تاسې ستړي نه شئ (يعني تاسې به ستړي شئ) رسول الله ♈ ته هغه مونځ ډير ګران وو چې هروخت به کېدو اګر که ډير لږ به وو او رسول الله ♈ به چې کله څه مونځ کولو نو هره ورځ به يې کولو . (رواه البخاري)

د حضرت ابي سلمة ❾ نه روايت دی هغه فرمايي ما د حضرت عائشې رضی الله عنها نه د رسول الله ♈ د روژې پوښتنه وکوله هغې مبارکې راته وفرمايل

: رسول ﷲ ♈ به روژه نیوه تردې چې مونږ په فکر وکاوه چې بس نور یې روژه شوه (نور یې نه ماتوي) او کله به یې روژې ودرولې تردې چې مونږ به فکر کاوه چې بس نوره یې ماته کړه (نورې روژې نه نیسي) ما په بله میاشت کې رسول ﷲ ♈ تر شعبان څخه په زیاتو روژو نیولو نه دی لیدلی شعبان به یې ټوله روژه نیوله او ټول شعبان به یې روژه نیوله مګر څه کم (رواه مسلم)

دریم ډول

# ممنوع (منع شوې) روژې

ځینې داسې روژې هم دي چې اسلام د هغې د نیولوڅخه منع کړیده او دا روژې په لاندې ډول دي .

## ۱. د ټول عمر روژه.

اسلام ددې څخه منع کوي چې څوک ټول کال روژه ونیسي او یوه ورځ یې هم ماته نه کړي پدې اړه حضرت عبد ﷲ بن عمرو بن العاص ❾ فرمایي : رسول ﷲ ♈ ته ددې خبر ور رسېدلی وو چې ما ویلي دي زه ترڅو چې ژوندی یم روژه به نیسم او د شپې به مونځ کوم کله چې رسول ﷲ ♈ لما

سره مخامخ شو ماته يې وويل دا خبره تا کړېده؟ ما ورته وويل هو! مور او پلار مې لتا زار شه دا ماويلي دي .

بيا رسول الله ﷺ راته وويل :

**فإنك لا تستطيع ذلك، فصم وأفطر، وقم ونم، وصم من الشهر ثلاثة أيام ؛ فإن الحسنة بعشر أمثالها، وذلك مثل صيام الدهر**

ترجمه : ته داسې نشې کولی روژه هم نيسه او کله يې ماته هم ، مونځ هم کوه او ويده کيږه هم د هرې مياشتې نه درى ورځې روژه ونيسه ځکه د يوې نيکي ثواب په لس چنده ورکول کيږي نو دا داسې ده لکه ټول کال چې تا روژه نيولې وي .

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دى هغه فرمايل : رسول الله ﷺ فرمايل : لا صام من صام الابد (يعني چا چې ټول عمر روژه ونيوه ده روژه ونه نيوله) (رواه مسلم)

## ۲. د اختر د ورځې روژه

بله هغه روژه چې اسلام ترې منع کړېده هغه د دوو اخترونو د ورځې روژې دي پدې اړه حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه فرمايي :

نهى النبي صلى الله عليه وسلم عن صوم يوم الفطر والنحر (صحيح البخاري)

يعني: رسول الله ﷺ د وړوكي او لوى اختر د ورځې د روژې د نيولو نه منع كړيده .

امام نووي رحمه الله فرمايي : ټولو علماوو پدې اتفاق كړى دى چې پدې دوو ورځو كې روژه نا روا ده په هر حال كه د نفلو نيت وي كه د كوم واجب د پوره كولو نيت وي .

كه يې د همدې ورځې روژه په ځان نذر كړه نو امام شافعي رحمه الله او نور علماء فرمايي دا نذر يې نه دى صحيح او قضاء يې هم وربانديې نشته امام ابو حنيفه رحمه الله فرمايي : كه يې په ځان نذر كړه نذر صحيح دى قضاء وربانديې لازمه ده او كه يې ونيوله د نذر څخه وربانديې خلاصيږي .

## ٣. د ښځې لپاره نفلي روژه

(چې خاوند يې په كور كې وي )

هغه ښځه چې خاوند يې په كور كې وي او بېمار هم نه وي او دهغه روژه هم نه وي نو چې نفلي روژه نيسي د خپل خاوند نه به اجازه اخلي او ترڅو يې چې د هغه نه اجازه نه وي اخيستي ددې لپاره روا نه ده چې روژه ونيسي .

حضرت ابو هريره ❾ فرمايي رسول الله ٣ فرمايل :

## لا تصوم المرأة وبعلها شاهدٌ إلا بإذنه

يعني : ښځه به پداسې حالت کې (نفلي) روژه نه نيسي چې خاوند يې حاضر وي مګر که هغه ورته اجازه وکوله .

امام کاساني رحمه الله فرمايي : د مېړوښې ښځې لپاره روا نه ده چې نفلي روژه ونيسي ترڅو يې خاوند ورته اجازه نه وي کړې او که ددې ښځې روژه داسې وه چې خاوند ته يې څه ډول تکليف نه وو پدې معنى چې دهغه هم روژه وه او يا هغه بيمار وو او يا هغه د زنانه نه خپل حاجت نشواى پوره کولى او يا مسافر وو نو بيا هغه ښځه له نفلي روژې څخه نشي منع کولى ځکه دا منع صرف ددې لپاره ده چې د زوجيت حقونه پايمال نشي او کله چې خاوند د خپلې ښځې نه د خاصې فايدې اخستلو نه عاجز وي نو بيا د روژې نه د منع کولو څه فايده او مطلب پاتې نشو .

# ٤. د حیض او نفاس په وخت کې روژه

بله ممنوع روژه د هغه زنانه روژه ده چې دا په حیض او یا نفاس کې وي .

پدې دواړو وختونو کې ښځه نه مونځ کولی شي او نه روژه نیسي لکن د مانځه قضایي هم وربانديې را ګرځول نشته او روژې چې هرڅو وخوري د هغې قضایي به را ګرځوي.

امام نووي رحمه الله فرمایي : هغه ښځه چې په حیض او یا نفاس کې وي روژه یې نه صحیح کیږي او اوس پدې واجبه هم نه ده چې دا روژه ونیسي او که یې نیسي ورته حرامه ده ددې لپاره ګناه ده او ددې ورځو قضاء په دې باندې لازمه ده او پدې باندې اجماع ده او که یې د روژې نیت نه وو هسې یې خوراک نه کولو نو بیا ګناه نشته (المجموع شرح المهذب)

رسول الله ﷺ د ښځو په اړه فرمایل : "ألیس إذا حاضت لم تصل، ولم تصم (رواه البخاري)

یعني : ښځه داسې نه ده چې دا حائضه شي دا نه روژه نیسي او نه مونځ کوي؟

# ٥. د تشريق د ورځو روژه

ايام التشريق د لوى اختر نه وروسته درى ورځې دي يولسم ، دولسم او ديارلسم پدې ورځو کې هم د روژې نيولو څخه منع شويده .

په صحيح مسلم کې د نبيشه الهذلي نه روايت دى هغه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل :

أَيَّامُ التَّشْرِيقِ أَيَّامُ أَكْلٍ وَشُرْبٍ وَذِكْرٍ لِلّهِ

ترجمه : د تشريق ورځې د خوراک او څښاک او د الله د ذکر ورځې دي .

د حمزة بن عمرو الاسلمي نه روايت دى چې په منى کې پداسې وخت کې چې رسول الله ﷺ هم هلته تشريف درلود ما يو سړى په اوښ سپور ولېدو چې ګرځېدو او خلکو ته يې ويل :

لا تَصُومُوا هَذِهِ الأَيَّامَ فَإِنَّهَا أَيَّامُ أَكْلٍ وَشُرْبٍ

ترجمه : روژه مه نيسئ دا د خوراک او څښاک ورځې دي . (امام احمد)

حضرت ابي مرة رضي الله عنه (مولى ام هانئ) فرمايي زه او عبد الله بن عمرو رضي الله عنه زمونږ د پلار عمرو بن العاص رضي الله عنه کور ته ورغلو هغه مونږ ته خوراک کېښودو او ويې فرمايل : خورئ عبد الله بن عمرو وويل زما روژه ده عمرو ابن العاص ورته وويل : وخوره

دا هغه ورځې دي چې رسول الله ♈ به مونږ ته حکم کولو چې پدې ورځو کې خوراک کوئ او پدې ورځو کې به يې د روژې نيولو څخه منع کولو (او دا د تشريق ورځې وې) (ابو داود)

حضرت سعد بن ابي وقاص ❾ فرمايي : ما ته رسول الله ♈ امر وکولو چې په خلکو کې اواز وکوم چې د منی خلکو ته اعلان وکوم :

إِنَّهَا أَيَّامُ أَكْلٍ وَشُرْبٍ ، فَلا صَوْمَ فِيهَا

دا د خوراک او څښاک ورځې دي پدې ورځو کې روژه نشته . (رواه احمد )

د حضرت عائشې او حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما څخه روايت دی چې رسول الله ♈ په ايام التشريق کې چا ته هم د روژې نيولو رخصت نه دی ورکړی مګر صرف هغه حاجي دا روژې نيولی شي چې د قربانۍ کولو وس يې نه وي او د هغې په ځای روژې نيسي .

# ٦. شک روژه

شک روژه د ۳۰ روژه ده په هغه صورت کې چې هوا صافه نه وي او میاشت ښکاره نه شي او که چېرت هوا صافه وي او بیا هم میاشت ښکاره نه شي دا شک روژه نه ده بیا خو یقین دی چې رمضان نه دی ځکه که وای نو میاشت به ښکاره شوې وه .

د شک د ورځې روژه د هغه کسانو لپاره روا ده چې یا خو یوه ورځ روژه نیسي او یوه ورځ یې نه نیسي او دا ورځ د هغې ورځې سره سمون وخوري چې دده باید روژه وی .

یا هغه کسان د شک روژه نیولی شي چې هغه خپل نیت په واک کې راوستلی شي او په هر صورت نیت وکوي چې روژه مې نفلي ده نو بیا که فرض شوه هم د فرضو په ځای دریږي (تفصیل یې را روان دی)

د حضرت عمار بن یاسر نه ❾ روایت شوی دی هغه فرمایي :

من صام الیوم الذي یشك فیه فقد عصی أبا القاسم ♈ (البخاري)

ترجمه : چا چې د شک په ورځ روژه ونیوه د ابا القاسم (رسول الله ♈) مخالفت یې وکولو .

ځینې علماوو ددې ورځې روژې ته حرام ویلي دي امام ابن منذر رحمه الله نقل کړي دي چې حضرت عمر اوعلي اوابن عباس اوابن مسعود اوعمار اوحذیفة اوأنس اوأبي هریرة اوالأوزاعي رضی الله عنهم اجمعین به ددې ورځې ر وژې ته حرام ویل (الشرح الممتع)

لکن دا حرام یې هم په هغه صورت کې ورته ویل چې څوک دا نیت وکوي چې دا مې د رمضان روژه ده او یا دا چې که د رمضان روژه شوه نو روژه به وي او که نه شوه بیا به یې نه وي او که د نفلي روژې نیت یې کاوه بیا ورته حرام نه وایي .

# ۷. د رمضان نه وړاندې روژه .

هغه څوک چې مخکې یې د روژو نیولو عادت نه وي د هغه په حق کې منع شویده چې د رمضان تر شروع یوه ورځ او یا دوه ورځې وړاندې روژه شروع کړي د حضرت ابي هریره ❾ نه روایت دی رسول الله ♈ فرمایي :

لا تقدموا رمضان بصوم یوم ولا یومین إلا رجلاً یصوم صوماً فلیصمه

د رمضان څخه په یوه ورځ او یا دوو ورځو روژو سره مه وړاندې کیږئ مګر هغه کس چې هغه په

عادي ورځو کې هم روژې نیسي هغه یې دې ونیسي . (رواه البخاري)

## ۸. د نوروز روژه

هغه کسان چې د نوروز په ورځ روژه ددې ورځې د احترام او تعظیم په نیت نیسي نو دا مکروه ده ځکه په اسلام کې ددې ورځې د هیڅ ډول تعظیم، احترام، ددې ورځې یو بل ته مبارکي ورکول او داسې نور کارونه نشته .

او په کتابونو کې هم ددې ورځې د روژې د کراهیت لپاره علت دا ګڼل شوی دی چې دا هغه ورځ ده چې صرف کفارو به یې تعظیم کولو او که څوک ددې ورځې روژه پدې نیت نیسي چې ددې ورځې تعظیم کوي نو بیا یې روژه مکروه ده او که هسې چا روژه نیوله او ددې ورځې تعظیم یې مطلب نه وو نو بیا پکې کراهیت نشته . (فتح القدیر)

## ۹. صوم الوصال

مسلسلې روژې نیول چې د دوو روژو په مینځ کې روژه ماتی ونه کوي ددېنه هم منع شوېده لېږ تر لږه خوراک به کوي چې دوه روژې سره متصلې نه شي رسول الله ﷺ د متصلو روژو د نیولو څخه منع کړېده د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ﷺ د متصلو روژو د نیولو

څخه منع وکوله چا ورته وويل : تاسو خو متصلې روژې نيسئ ؟ ده ♈ ورته وفرمايل :

إني لست مثلكم إني أطعم وأسقى . (رواه البخاري باب صوم الوصال)

يعني : زه ستاسې په ډول نه يم ماته خوراک او څښاک راکول کيږي .

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمايي : رسول الله ♈ په خلکو باندې د رحمت له امله هغوی ددېنه منع کول چې دوی دې متصلې روژې ونيسي او کله چې ورته وويل شول يا رسول الله ♈ تاسې خو متصلې روژې نيسئ ؟ ده ورته وفرمايل :

إني لست كهيأتكم، إني يطعمني ربي ويسقين (رواه البخاري)

يعني زه ستاسې په ډول نه يم زما رب ماته خوراک او څښاک راکوي .

امام ابن قدامه رحمه الله فرمايي : وصال په روژه کې ديته وايي چې د دوو روژو په مينځ کې روژه ماته نه کړي د اکثر اهل العلم له نظره دا ډول روژه مکروه ده او دا کراهيت او دا منع صرف ددې امله ده چې رسول الله ♈ د خپل امت سره مهرباني کوي په دوی باندې ترحم کوي ددې امله چې دوی په تکليف کې رانشي نو دا روژه يې ورته منع کړېده او پدې کې داسې څه بله خبره

نښتـه چې د هغې املـه دا روژې حرامې وګـرځول شي . (الـمغـني)

# ۱۰. پـه سفـر کـې د سختـي سره روژه

وروستـه بـه یـې تـفصيل راشي د مسافـر پـه حق کې دا غوره ده چې هغه روژه ونـيسي او کـه يـې خوري نـو ورتـه روا ده لـکن هغـه مسافـر چې پـه پښو بـانـدې ځي او د تـکلـيف نـه ډکـه ورځ يـې وي د هغـه لـپاره مـکروه ده چې روژه ونـيسي بـلکه غوره خبـر د هغه پـه حق کې داده چې هغـه روژه وخوري او بـيا بـه يـې قـضايـي را وګـرځـوي .

د حضرت جابـر ❾ نـه روايـت شوی دی چې رسول الله ♈ پـه سفـر روان وو پـه يـو ځای کې يـې بـير بـار ولـيدو چې خلک را ټـول شوي وو او پـه يـو کس بـانـدې يـې سيـوری کړی وو رسول الله ♈ پـوښتـنه وکـولـه : دا څه دي؟ خلـکو ورتـه وويـل : دلـته يـو کس دی روژه يـې ده .

رسول الله ♈ ورتـه وفـرمـايـل : پـه سفـر کـې روژه نـيکي نـه ده (پـه هغه صورت کې چې انسان داسې حالـت تـه ورسوي لـکه دا مسافـر يـې چې رسولـی دی او وربـانـدې سختـه شي) (رواه الـبخاري)

د حضرت جابر ❾ نه روايت دى چې د مكې د فتح په كال رسول الله ♈ مكې مكرمې ته په رمضان كې روان شو روژه يې وه تردې چې كراع الغميم نومې ځاى ته ورسېدو خلكو روژه نيولې وه رسول الله ♈ د اوبو يو جام را وغوښتو او پورته يې كړو چې ټولو خلكو ورته وكتل بيا يې هغه اوبه و څښلې (ددې لپاره يې دوى ته ښكاره كړې چې دوى هم روژه ماته كړي ځكه دوى ټول مسافر وو او په روژه كې تكليف وو) بيا ورته وويل شول ځينې خلكو خو تر اوسه پورې روژه نيولې ده ؟ رسول الله ♈ ورته وويل : أولئك العصاة أولئك العصاة (يعني دوى نا فرمان دي دوى نا فرمان دي) (رواه مسلم)

# ١١. د عرفات د ورځې روژه

هغه كسان چې په حج كې وي د هغوى لپاره د عرفات روژه نيول مكروه دي د حضرت ابي هريره ❾ نه روايت دى هغه فرمايي :

نهى رسول الله ♈ عن صيام يوم عرفة بعرفة

ترجمه : رسول الله ♈ د عرفات د ورځې د روژې نه د عرفات په ميدان كې منع كړېده .

د عرفات په ورځ د عرفات په ميدان كې د رسول الله ♈ په روژه كې د خلكو شك شو بيا يو جام

شودې ور ولېږل شوې رسول الله ♈ هغه و څښلې او خلکو ورته کتل ددې لپاره چې دوی ته ښکاره شي چې د رسول الله ♈ روژه نه ده او بل دا ورځ د عمل او ذکر ورځ ده او ددې ورځې آخر له هغه وخت څخه یو وخت دی چې الله پکې دعاګانې قبلوي او کله چې د انسان روژه وي نو ددې ورځې آخر به د انسان لپاره هغه وخت وي چې دی پکې ډېر ستړی وي او د دعا کولو به یې د زړه زور نه وي په خاصه توګه چې د عرفات ورځ په اُوړي کې وي نو ددې مهم وخت د فایدې څخه انسان بیا نشي برخه من کېدلی او روژه خو انسان بل وخت هم نیولی شي .

صرف د همدې وجې نه د عرفات روژه د حاجیانو لپاره مکروه او د عامو مسلمانانو لپاره سنت ده



# د روژې وخت

⇦ د سحر د راختلو نه شروع کیږي تر لمر لوېده پورې دوام کوي .

⇦ که په وخت کې غلطي وشوه سحر وختي پې خوراک وکولو دده ګمان وو چې شپه لا تر اوسه پاتې ده او یا یې روژه ماته کړه دده ګمان وو چې ماښام شوی دی په دواړو صورتونو کې قضاء لازمه ده کفاره وربانديې نشته (محیط السرخسي)

⇦ چې په سحر کې یې شک شي چې کیدای شي سحر شوی وي نو ښه خبره داده چې خوراک بس کړي او که یې بس نه کړو نو ترڅو چې په یقیني توګه نه وي معلوم شوی چې سحر شوی وو ده خوراک کولو نو روژه یې صحیح کیږي  او که په یقیني ډول معلومه شوه چې په سحر کې یې خوراک وکولو نو بیا یې روژه ماته ده قضائي به را ګرځوي. (فتح القدیر)

⇦ او که په یقیني توګه معلوم نه وو چې په سحر کې یې خوراک کړی دی لکن غالب ګمان یې وو چې ده په کوم وخت کې خوراک کولو سحر شوی وو نو که د روژې قضائي راوړي دا احتیاط دی لکن وربانديې لازمه نه ده . (هدایه )

⇦ که سحر وختي ده خوراک کولو او دوو کسانو ورته وویل چې سحر شوی دی ده بیا هم خوراک

کولو او دهغه دوو کسانو په خبره یې ونه درولو نو قضاء او کفاره دواړه وربانديلازم دي ځکه ده ته په کار وو چې د دوو کسانو ګواهي یې منلې وای .

⇦ که په همدې پورتني صورت کې دوو کسانو ورته ویل چې سحر شوی دی او دوو کسانو ورته ویل چې شپه لا پاتې ده دی باید د هغه کسانو خبره ومني چې هغوی وایي سحر شوی دی او که ده د هغه وخت نه وروسته خوراک وکولو او بیا وروسته په یقین سره معلومه شوه چې پدې وخت کې سحر شوی وو نو په ده باندې قضاء او کفاره دواړه لا زم دي د هغه دوو کسانو (چې وایې شپه لا پاتې ده) خبرې ته اعتبار نشته .

⇦ او که یو کس ورته ویل چې شپه لا پاتې ده او یو کس ورته ویل چې سحر شوی دی ده بیا هم خوراک روان وساتلو نو صرف قضائي به ورکوي ځکه د یوه کس ګواهي پوره ګواهي نه ده . (فتا وی قاضي خان)

⇦ که چا یو څوک ولېږل چې ته ورشته وګوره چې سحر شوی دی او که شپه لا پاتې ده هغه چې بېرته راغلو ویل یې شپه لا پاتې ده نو دواړو په شریکه خوراک وکولو په هغه کس کفاره نشته چاته چې ویل شوي وو چې شپه لا پاتې ده او دا بل کس چې د سحر د معلومولو لپاره یې بهر ته

را لېږلی وو که دی پوه وو چې سحر شوی دی بیا یې هم خوراک وکولو نو په ده کفاره شته او که دی هم نه وو پوه شوی نو بیا په ده هم کفاره نشته .

⇦ د ماښام په وخت کې یې که د لمر په لوېدو کې شک شو ترڅو یې چې یقین نه وي شوی نو روژه به نه ماتوي. (الکافي، عالمګیري)

⇦ او که پداسې حالت کې یې خوراک وکولو چې د دوی غالب ګمان دا وو چې لمر تر اوسه نه دی غورځېدلی او بیا وروسته ښکاره شوه چې لمر نه وو پرېوتلی نو قضاء او کفاره وربانديې دي (فتاوی قاضي خان)



# د روژې شرطونه

د روژې لپاره درى ډول شرطونه دي .

١. د وجوب شرطونه يې

د وجوب شرطونه يې درى دي

١. اسلام

په كافر باندې روژه نيول نه دي فرض اول په هغه باندې ضروري دي چې اسلام قبول كړي بيا وربانـدې ضروري دي چې روژه ونيسي .

٢. بلوغ

په ماشوم باندې روژه نيول فرض نه دي .

٣. عقل

په لېوني باندې روژه نيول فرض نه دي .

۲. د اداء د وجوب شرطونه یې دوه دي :

۱. صحت

په بېمار باندې روژه فرض ده لکن چې د روژې نېولو نه عاجز وي دا وربانديې نه ده فرض چې همدا اوس يې دې ونيسي .

۲. اقامة

په همدې ډول په مسافر باندې روژه فرض ده لکن ترڅو چې مسافر په سفر کې وي په ده باندې فرض نه ده چې روژه دې ونيسي که يې نيسي نو ښه خبره ده او که يې ونه نيسي ګناه پکې نشته .

۳. د اداء د صحيت شرطونه

دا داسې شرطونه دي چې ددېنه بغير اداء نه صحيح کيږي او دا دوه دي .

۱. د حيض او نفاس نه پاکي .

۲. نيت

⇦ که بغير د روژې د نيت نه څوک تولـه ورځ خوراک او څښاک ونه کوي نو دا روژه نه ده او نيت په زړه کې عزم او قصد دی چې دی به روژه نيسي . (الخلاصة / الکافي)

⇦ په نیت کې که په ژبه تلفظ وکوي نو سنت طريقه ده (النهر الفائق)

⇦ زمونږ په مذهب د هرې ورځې روژې لپاره نیت ضروري دی (فتاوی قاضي خان)

⇦ په روژه کې پېشمنی کول د روژې نیت دی او که چا پېشمنی وکولو او بیا یې ویل چې دا مې هسې خوراک وکولو زه سبا روژه نه نیسم نو بیا دا نیت نه دی او په عادي ډول چې څوک را پاځيږي او پېشمنی وکوي نو د روژې لپاره همدا نیت دی . (عالمګیري)

⇦ که په خوله یې وویل (سبا مې انشاء الله د روژې نیولو نیت دی) نو همدا نیت دی (الظهيرية)

⇦ که چا داسې نیت وکولو (سبا که کوم پروګرام ته وغوښتل شوم روژه به مې نه وي او که ونه غوښتل شوم روژه مې ده) پدې نیت سره روژه نه صحیح کیږي. (عالمګیري)

⇦ که چا په روژه کې نیت وکولو چې روژه ماتوي او بغیر ددې نیت نه یې نور څه عملي کار ونه کولو روژه یې صحیح ده (په تش نیت سره روژه نه ماتیږي ) . (عالمګیري)

⇦ د سبا د ورځې د روژې لپاره به نیت هغه وخت کوي چې د نن ورځې لمر ډوب شي د لمر لویده نه وړاندې د سبا د ورځې د روژې لپاره نیت نه صحیح کیږي . (محیط السرخسي)

⇦ د رمضان د روژې، د معینې ورځې د نذر د روژې د همدې ورځې د نفل د روژې لپاره د همدې موجوده ورځې تر نیمې نه وړاندې نیت صحیح دی یعني که څوک د سحر نه د ورځې تر نیمی پورې خوراک او څښاک ونه کوي او اوس نیت وکوي چې نن مې روژه ده نو صحیح ده . (الجامع الصغیر)

⇦ په ورځ کې تر زوال وړاندې چې د روژې نیت وشي پورتنی یاد کړل شوې روژې صحیح دي لکن که د سحر نه تر اوسه پورې داسې کار نه وي شوی چې په هغه سره روژه ماتیږي د مثال په ډول له سحر نه تر نیمې ورځې یې خوراک، څښاک او یا جماع ونه کوله نو اوس نیت کولی شي چې دا ورځ د زما روژه وي او که دا کارونه شوي وو که په سهو سره وي او که په قصد سره وي اوس ددېنه وروسته د روژې نیت نشي کولی.

⇦ که د ورځې تر نیمایي پورې چا نه څه خوراک او نه څښاک وکولو او بیا یې نیت وکولو چې دا ورځ به نفلي ، یا د معلوم نذر او یا د رمضان روژه شي نو صحیح ده لکن دا نیت به کوي چې د ورځې د شروع نه مې روژه ده او که دا نیت یې وکولو چې د اوس نه وروسته به مې روژه شي نو نده صحیح . (عالمګیري)

⇦ لکن د روژې په نیت کې غوره خبره داده چې د شپې نه ورته نیت وکوي . (عالمګیري)

- که د روژې په میاشت کې یې د بلې واجبې روژې نیت وکولو نو د رمضان د میاشت نه حسابیږي نیت یې بې ځایه دی. (عالمګیري)
- په نیت کې د جوړ او ناروغ مسافر او مقیم فرق نشته ټول یو شان دي.
- په مسافر باندې سره ددې چې د رمضان د روژې نیول اوس فرض نه دي لکن که ده د بل واجب لپاره روژه ونیوله هغه یې هم د رمضان له روژې نه حسابیږ (التبیین)
- د کفارې او د رمضان د قضاء د روژو لپاره به د شپې څخه نیت کوي د ورځې په نیمایي کې د هغې لپاره نیت نشي کولی. (النقایة)

# د روژې احکام

## د میاشتې لټون

⇦ خلک به د شعبان په ۲۹ مه ورځ د لمر لوېده په وخت کې د میاشتې لټون کوي که چېرته میاشت ولېدل شوه نو سبا د روژه ونیسي او که ښکاره نه شوه نو بیا د د شعبان ۳۰ ورځې پوره کړي او دهغې نه وروسته دې روژه شروع کړي. (الاختیار شرح المختار)

⇦ د سپوږمی لټون کول فرض کفایي دي که په ټولو خلکو کې ځینې خلک د سپوږمۍ لټون وکوي د نورو غاړه پرې خلاصیږي او که هېڅوک یې ونه کوي د ټولو مسلمانانو غاړه وربانديې بندیږي (کتاب الفقه)

## دمیاشت په کتو کې د دوربین استعمال

⇦ دوربین یوه آله ده چې نظر تېزوي ځینې چشمې هم همدا کار کولی شي نو په استعمال کې یې هېڅ ناروا والی نشته او که په دوربین کې هم میاشت ولیدل شي نو حکم وربانديږ ثابتیږي (امداد الفتاوی ج ۲ ص ۱۰۹)

## د رمضان په ثبوت کې د راډیو او تلویزیون حکم

⇦ راډیو او تلویزیون او یانورې آلې ددې لپاره کارول کیږي چې تر چا پورې یو داسې خبر ورسیږي کوم چې د راډیو او تلویزیون په مرکز کې خلک پرې خبر دي او په نور ماحول کې کېدای شي څوک پرې نه وي خبر نو ددې آلې په مرسته دا خبر تر خلکو پورې رسیږي د روژې اختر او نورو مسائلو کې ددې خبر هغه وخت د اعتماد وړ وي چې د دوی په مرکز کې (له کوم ځای نه چې خبر خپریږي) هلته په شرعي ډول ثابت وي یعني که په کوم ځای کې حکومت د اسلامي حاکم انتظام وکوي او هلته په شرعي توګه څوک راشي د میاشتې د لېدلو ګواهي ورکړي او په هغه ځای کې راډیو تلویزیون وي او د هغوی په ذریعه اعلان وکول شي چې دلته ګواهي وړاندې شوه چې میاشت لېدل شوېده نو

ددې امله به سبا (پدې تاريخ) د روژې اوله يا د اختر اوله ورځ وي صرف دومره به پکې ضروري وي چې ددې اعلان له مخې خو مياشت چېرته ۲۸ او يا ۳۱ نه کيږي (ځکه په عربي تاريخ کې ۲۸ او ۳۱ ورځې مياشت نشته)

⇦ او که چېرته هلته د داسې شرعي حاکم موجوديت نه وي داسې هم کېدلی شي چې د يو څو کسانو علماوو ګروپ جوړ کړل شي چې هغوی د مياشتې په احکامو خبر وي هغوی سره را ټول شي او چې مياشت ووينې نو په شرعي الفاظو باندې جوړ شوی را پور تيار کړي د راديو تلويزيون مرکز ته دا خبر ور وليږي او هغه يې اعلان کړي او غوره به دا وي چې د همدې ګروپ نه يو کس بوتلل شي او هلته دی پخپله اعلان وکوي چې دا کس متشرع وي . (نظام الفتاوی ج۱ ص ۸۲)

## د مياشت په خبر کې د تلفون حکم

⇦ ګواهي په تلفون سره نه صحيح کيږي يعني چې څوک په تلفون خبرې کوي او حاکم ته په تلفون باندې ګواهي ووايي دا د قبول وړ نه ده او خبر په تلفون صحيح کيږي يعني که په لرې علاقه کې حاکم خپل نمائنده مقرر کړي او څوک چې مياشت ووينې هغه راشي همدې د حاکم نمائنده ته خپله ګواهي وړاندې کړې د حاکم نمائنده د هغوی نه مخامخ د هغوی ګواهي

واوري او بيا كولى شي چې حاكم ته په تلفون ووايي چې دلته زما په وړاندې كسانو ګواهي وركړه چې د ګواهي په ټولو شرطونو پوره وه (جديد فقهي مسائل ص ٨٦)

## د اسلامي مياشت په ثبوت كې د جنتري حكم

⇦ كه چېرته مياشت نه ښكاره كيږي نو خلك جنتري ته مخ واړوي او هلته وګوري چې د رمضان مياشت ٢٩ ده او داسې نور يا د رمضان په شروع كې د جنتري نه معلومه كړي چې د شعبان مياشت ٢٩ ده نو سبا روژه شروع كړي دې ته هېڅ اعتبار نشته نو د شعبان مياشت به ٣٠ پوره كوي او بيا به رمضان شروع كوي او بيا چې د رمضان په آخر كې بيا همداسې حالت وو چې مياشت نه ښكاره كېده نو رمضان به هم دېرش پوره كړي جنتري ته پكې اعتبار نشته (فتاوى دار العلوم ديوبند ج٦ ص ٣٦٩)

## په كومه علاقه كې چې منظم ٢٤ ساعته شپه او ورځ نه وي.

⇦ په دنيا كې ځينې داسې علاقې هم شته چې هلته زمونږ د څو شپو بلكه مياشتو په برابر هلته يوه شپه وي لكه چې وايي په الساكا (نومي

ځای) کې شپږ میاشتې لمر نه را خیږي نو په کوم ځای کې چې څو شپې سپوږمۍ نه را خیږي هلته به څه حکم وي؟

په کومو ځایو کې چې څو میاشتې مسلسل لمر وي او یا څو میاشتې مسلسل هلته لمر نه را خیږي لکه چې ارض تسعین او د هغې سره په خوا کې ځایونه دي هغوی دې د هغه ځای چې دوی ته نیږدې وي او هلته ۲٤ ساعته په عادي توګه شپه او ورځ تیروي د هغوی د حساب له مخې د ځان ته د وخت حساب جوړ کړي او پدې ډول دې خپله شپه ورځ حسابوي او په همدې ډول دې خپلې میاشتې حساب کړي او چې کله د هغه حساب له مخې رمضان شي نو روژه دې شروع کړي او بیا دې په خپل وخت کې ۲٤ ساعته معلوم کړي اوله برخه دې شپه حساب کړي دهغې برخې د ختمېدلو نه دوه ساعته وړاندې دې خوراک وکوي او بیا چې دا برخه پای ته ورسیږي د ۲٤ ساعتونو په بله برخه کې به خوراک نه کوي او په هغه کې به پنځه وخته مونځ هم د همدې حساب نه معلوموي او کله چې دا برخه پای ته ورسېده بیا د روژه ماته کړي په همدې ډول دې خپل عبادتونه مخ په وړاندې بوزي. (نظام الفتاوی ج۱ ص ۷۸)

همدارنګه ځینې ملکونه داسې هم شته چې هلته هروخت د اسمان په کنارو کې وریځ ډوله ګرد وي

چې هلته سپوږمۍ نه ښکاره کيږي هغوی به د میاشتي شروع څنګه معلوموي؟

لکه مخکې چې تېر شول ترڅو چې د میاشتې ۲۸ ورځې کېدل او یا ۳۱ ورځې کېدل ترېنه ثابت نشي مونږ د خبرونو وسیلې لکه رادیو ، تلویزیون و غیره استعمالولی شو نو په کوم ځای کې چې خپله میاشت نشي لیدل کېدلی هغوی دې د نورو ځایونو د خلکو سره خپله روژه او اختر شروع کوي. (نظام الفتاوی)

⇦ او ددې لپاره چې د شعبان حساب په سمه توګه پوره کړي نو د شعبان په شروع کې میاشت کتل مستحب دي (عالمګیري)

⇦ د میاشتې د اول تاریخ په معلومولو کې د نجومیانو او د تاریخي ماهرینو قول ته اعتبار نشته. همدارنګه که څوک د هغه حساب له مخې میاشت معلومولی شي نو په هغه د عمل نه کوي (معراج الدراي)

⇦ که په اسمان کې وریځ وه نو چې یو عادل کس د میاشتې د لېدلو ګواهي ورکړه نو روژه به وربانديې نېول کیږي دا ګواهي ورکونکی که نارینه وي او که ښځینه وي د روژې د نیولو لپاره دده ګواهي منظوره ده (فتاوی قاضي خان)

⇦ د امام ابي حنيفه رحمه الله په نيز كه داسې يو څوک د مياشتې د لېدلو ګواهي وركړي چې د هغه د عدالت او ښه سرېتوب او يا نه عدالت په اړه هېڅ ته معلومات نه وي نو بيا هم د روژې لپاره دده ګواهي منظوره ده . (المحيط)

⇦ په دې ګواهي کې نه د ګواهي خاص لفظ (اشهد ... ) ضروري دی او نه د حاکم حکم ضروري دی او نه پکې دعوا ضروري ده حتی چې چا حاکم ته خپله ګواهي آورولي پدې وخت کې بل چا دده ګواهي واوريده او هغه دده په عدالت باندې پوه وو نو بغير ددې چې حاکم حکم وکوي چې روژې ونيسي په آورېدونکي باندې روژه نېول فرض دي .

⇦ كه چېرته امام او قاضي پخپله مياشت وليده نو كه ورسره څوک وو چې هغه ته يې ورښكاره کړي نو ښه خبره ده چې هغوی ته يې ور وښيي چې هغوی يې ووينې او كه يې بل چا ته ور ونه ښوده نو په خپلو لېدلو هم كولى شي حکم وكوي چې روژه ونيسئ دا د روژې په اړه دا حکم دی او کله چې د وړوکي او لوی اختر حكم كوي نو هلته يې په خپلو لېدلو نشي اختر كولى ترڅو ګواهان پيدا نشي. (السراج الوهاج)

⇦ د روژې مياشت چې هرڅوک ووينې په هماغه شپه کې به ګواهي وركوي حتى چې كه فاسق يې ووينې او دده د ايقين وي چې قاضي زما ګواهي نه

مني بيا به هم دی ځي او ګواهي به ورکوي (عالمګيري)

⇦ که په کلي کې (پداسې ځای کې چې هلته قاضي او حاکم موجود نه وي) څوک مياشت ووينې هغه به ځي اوپه جومات کې به ددې اعلان کوي چې ده مياشت وليده او خلک به هم دده په خبره سبا ته روژه نيسي که چېرته دده په عدالت باندې د چا اعتراض نه وو. (المحيط)

⇦ يو چا د رمضان مياشت وليده راغلو قاضي ته يې خپله ګواهي وړاندې کړه هغه دده ګواهي رد کړه ويې نه منله او د روژی اعلان يې ونه کولو نو دی به خپله روژه نيسي او که يې ونه نيوله نو په ده باندې صرف قضائي ده کفاره وربانډې نشته . (فتاوی قاضي خان)

⇦ که کوم فاسق مياشت وليده ګواهي يې ورکړه قاضي دده ګواهي ومنله او دروژې اعلان يې وکولو سبا ګواهي ورکونکي پخپله روژه وخوړه نو په ده باندې به قضاء او کفاره دواړه لازم وي. (الخلاصة)

⇦ او که اسمان صفا وو نو بيا به د يو کس ګواهي نه منل کيږي ترڅو يې يوه ډله په ليدلو ګواهي ورنه کړي او ددې لپاره مقدار او تعداد نه دی معين شوی حکم سپارل شوی

رايې د حاکم ته چې څومره کسان هغه ته کافي ښکاره شول صحيح ده (الاختيار شرح المختار)

- پداسې حالت کې هم چې يو کس د ښار د بهر يا له کوم داسې ځای نه راغلو چې هغه ځای په لوړه وو نو د يو کس ګواهي د هم قبوله کړي. (الهداية)

- د اختر د مياشتې لپاره به د رمضان په ۲۹ باندې لټون کوي که يو کس وليده او نورو خلکو ونه ليده او د اختر اعلان ونشو دا يو کس به هم روژه نه خوري او که يې وخوړه نو قضائي به را ګرځوي کفاره ورباندې نشته. (الاختيار شرح المختار)

- که چېرته چا د اختر مياشت وليده راغلو د قاضي په وړاندې يې ګواهي وړاندې کړه قاضي دده ګواهي ونه منله او سبا د اختر اعلان ونشو نو دا کس به هم روژه نه خوري که يې وخوړه کفاره ورباندې نشته د روژې قضائي به راګرځوي. (فتاوى قاضي خان)

- که يو کس د اختر مياشت وليده او خپل ملګري ته يې وويل چې ما د اختر مياشت وليده هغه دده خبره ومنله او روژه يې وخوړه نو په هغه کس کفاره نشته قضائي به را ګرځوي (فتح القدير)

⇦ که امام او یا قاضي پخپله میاشت ولیده او نورو خلکو ونه لیده نو د ګواهانو د نشت والي له امله د اختر اعلان ونشو نو قاضي او حاکم به خپله روژه نه ماتوي نه په ښکاره نه په پټه (السراج الوهاج)

⇦ که د اختر په معامله کې اسمان پاک نه وو وریځ وه نو بیا به لږ تر لږه دوه نارینه او یا یو نارینه او دوه ښځینه حاضریږي چې ګواهي ورکړي او د ګواهي لپاره به د ګواهي الفاظ ضروري وي . (خزانة المفتین)

⇦ که په کلي کې (په داسې ځای کې چې هلته والي او قاضي نه وي) پداس حالت کې چې وریځ وي دوو کسانو ګواهي ورکړه چې مونږ د اختر میاشت ولیده نو سبا که خلک اختر کړي نو پروا یې نشته . (الزاهدي)

⇦ لکن د پورتنیو دوو کسانو په حق کې عدالت شرط دی دا دوه کسان به فاسقان نه وي (النقایة)

⇦ د میاشتو د لیدلو په حق کې لوی اختر هم همداسې دی لکه وړوکی په همدې ډول به کسان پیدا کیږي چې د ذی الحجې د میاشتې د لېدلو ګواهي ورکړي. (الهدایة)

⇦ که د رمضان میاشت دوو کسانو ولیده او ګواهي یې وړاندې کړه قاضي ددوی ګواهي ومنله او

دهغې ورځې نه دېرش ورځې پوره شوې د دېرشو ورځو نه وروسته هم د اختر میاشت ونه لیدل شوه نو یو دېرشمه روژه به نه نیسي اختر به یې کړي. (المحیط)

⇦ اختلاف د مطالعو ته اعتبار نشته . (فتاوی قاضي خان/ عالمګیري)

⇦ اختلاف د مطالعو ته اعتبار نشته دا مطلب که د مشرق خلک میاشت ویني او په څه وسیله باندې د مغرب خلکو ته خبر ورکړل شي چې په مشرق کې میاشت ښکاره شوېده نو ټول به پرې عمل کوي (الخلاصة/ عالمګیري)

⇦ که په کوم ځای کې خلکو ۲۸ ورځې روژه ونیوه او بیا یې د اختر میاشت ولیده نو د یوې ورځې قضائي به را وګرځوي او که یې ۲۹ ورځې روژه نیولې وه بیا د اختر میاشت ولیدل شوه نو قضائي وربانديې نشته . (عالمګیري)

## د عباداتو لپاره د هجري قمري تاریخ د انتخاب حکمت

⇦ هجري قمري کال داسې یو کال دی چې تر میلادي او هجري شمسي نه پدې کې تقریباً لس ورځې کمې دي نو ځکه دا د ژمي پسرلي اوړي او منې په فصلونوکې ګرځي یو وخت روژه په ګرمۍ کې راځي او کله بیا په یخنۍ کې په همدې ډول پدې سره

انسان ته موقع په لاس ورځي چې په مختلفو فصلونو کې عبادت وکوي نو کله به روژه اسانه وي او کله به بیا سخته وي الله ﷻ به ورته زیات اجر ورکوي او د الله ﷻ بندګان به هم په هر فصل کې امتحان کیږي لکه په ګرمۍ کې چې روژه وي نو ډېر کسان یې نه نیسي او چې کله په یخنۍ کې وي نو اسانه وي او لږ خلک یې خوري نور یې نیسي نو پدې کې هم د الله ﷻ یو حکمت دی .

⇦ بله خبره داده چې ددې تاریخ د پیدا کولو لپاره هېڅ ډول تعلیم او زده کړې ته ضرورت نشته که څوک په غره کې اوسیږي او که په دښته کې او که په ښار کې میاشت ویني او د هغې نه معلومولی شي چې اوس کومه میاشت شوه د همدې وجې نه دي چې زمونږ مشرانو به بغیر د آلاتو او جنتریانو او نورو تعلیمونو په دقیق ډول سره د کال حساب کولی شول .

⇦ بل د اسلام دین د ټولې دنیا لپاره دی نو ددې امله د عباداتو لپاره د قمري کال حساب انتخاب شوی چې د دنیا په ټولو طرفونو کې موسمونه (پسرلی، اوړی، منی ، ژمی) په یو ډول نه وي د دنیا په ځینې برخو کې اوړی وي په ځینو برخو کې ژمی وي پدې ترتیب که د مثال په ډول د هجري شمسي او یا میلادي کال

په حساب باندې روژه تعین شوی وای د مثال په ډول د حوت میاشت او یا د جنوري میاشت نو بیا به تول عمر په ځینې ملکونو کې په ژمې کې روژه وه او په ځینې ملکونو کې به هروخت په اوړي کې وه پدې سره به ددین تحمل د ځینې خلکو لپاره ډېر اسان او د ځینې خلکو لپاره ډېر سخت وو او اوس چې قمري کال دی دا په هرځای کې گرځي په هرځای کې په هر موسم کې روژه راځي.

## شک روژه

⇦ د شک ورځ د شعبان آخري ورځ وي (دېرشمه) چې د رمضان د میاشتې سپوږمی ښکاره نه شي او هېڅوک د میاشتې د لېدلو گواهي ورنه کړي او یا گواهي ورکړل شي د کومو اسبابو له امله قاضي هغه گواهي قبوله نه کړي او وریځ وي اسمان نه ښکاره کیږي .

⇦ که چېرته هوا صافه وي او بیا هم میاشت ښکاره نه شي نو دې ورځې ته د شک ورځ نه ویله کیږي دا خو معلومه ده چې سبا رمضان نه دی (الزاهدي/ عالمگیري)

⇦ د شک د ورځې روژه چې ددې نیت ورته وکوي چې دا د رمضان روژه ده دا مکروه ده. (فتاوی قاضي خان/ الهدایة)

⇦ د شک د ورځې روژې ته به د نفلو نیت وکوي که بیا وروسته ښکاره شوه چې دا د رمضان د روژې اوله ورځ وه نو د رمضان له روژې نه يې صحیح ده او که چېرته روژه نه شوه نو بیا یې د نفلو روژه ده او که یې ماته کړه د یوې ورځې روژې قضائي وربانديې لازمه ده ځکه ټول نفلي عبادتونه چې شروع کړل شي بېرته پرېښودل شي نو دهغې قضائي راګرځول واجب شي. (فتاوی قاضي خان)

⇦ او که یې د شک په ورځ صرف د روژې نیت وکولو او هغه یې معینه نه کړه چې د څه لپاره روژه نیسي دا مکروه ده لکن بیا هم که رمضان نه شو دده لپاره نفلي روژه ده او که رمضان شو نو دده روژه د رمضان د روژې په ځای دریږي. (المحیط)

⇦ که داسې نیت یې وکولو چې که رمضان شو نو د رمضان روژه به مې وي او که رمضان نه شو بیا روژه نه نیسم نو پدې نیت روژه نه صحیح کیږي .

⇦ که داسې نیت یې وکولو چې که سبا رمضان شو نو فرضي روژه به مې وي او که رمضان نشو نو د بل واجب نیت وکوي چې دهغه په ځای به شي دا نیت مکروه دی او که رمضان شو نو د فرضي روژې په ځای دریږي او که رمضان نه شو نو د

هغه بل واجب په ځای نه دريږي دا روژه يې نفلي روژه ده . (التبيين)

## د شک د ورځې روژه نیول غوره دي او که خوړل؟

- پدې اړه علماء کرام فرمايي که چا د شعبان د میاشتې آخرې ورځې روژې نیولې نو هغه چې روژه ونیسي نو غوره خبره ده (اختیار شرح المختار)
- همدارنګه د خواصو (هغه کسان چې د شک د ورځې په ورځ د نفلو په نیت د ټینګ عزم سره روژه نیولی شي (معراج الدراية) ) چې د نفلو نیت وکوي نو روژه نیول يې غوره خبره ده او نیت به يې د نفلي روژې نیت وي که رمضان شو او کنه دا روژه به د نفلي روژې په نیت ساتي نو که رمضان شو د فرضي په ځای دریږي. (عالمګیري)
- که د شک په ورځ څوک په شک کې را ویښ شي چې رمضان دی او کنه په همدې شک کې يې په هېره سره خوراک وکولو او بیا وروسته شکاره شوه چې رمضان دی نو اوس د روژې نیت نشي کولی دا روژه يې نه کیږي (الظهيرية )

# د روژې ماتونکي

د روژې ماتونکي په دوه ډوله دي

## ١ . يوازې قضاء لازمونکي شيان

⇦ که له چا نه روژه هېره وي او خوراک ، څښاک او يا بل څه د روژې ماتونکي وکوي نو روژه يې نه ماتيږي (که روژه فرضي يا نفلي وي د ټولو همدا حکم دی) لکن که د خوراک په وخت کې چا ورته وويل چې ستا روژه ده ده بيا هم خپل خوراک ته دوام ورکړو پدې نيت چې روژه خو مې هسې هم ماته شوه نو روژه يې ماته ده . (الظهيرية)

⇦ که له چا نه خپله روژه هېره وي او خوراک کوي بل څوک يې ويني هغه په ده ته ور په زړه کوي چې دده روژه ده او کنه؟

که روژه لرونکی تکړه وو او په وس يې پوره وه چې روژه تر بيګاه پورې په ښه توګه پوره کړي نو بيا د ور په زړه کړي او که هغه کمزوری وو بېمار وو او يا سپين ږيری وو نو بيا د پرېږدي چې خوراک يا څښاک وکوي (روژه د نه ور په زړه کوي) . (الظهيرية)

⇦ هغه کس چې روژه يې په ياد وي په خطا سره ترې خوراک يا څښاک وشي يعني دده اراده

خوراک نه وه یوشی یې خولې ته ورغلل او تېر شول او یا څوک په زور خوراک یا څښاک یا جماع ورباندې وکوي روژه یې ماتیږي (فتاوی قاضي خان)

⇦ که چا په خوله اوبه تېرولې یا یې په پوزه تېرولې اوبه ترینه تېرې شوې که روژه یې په زړه وه روژه یې ماته شوه قضاء پرې لازمه ده او که چېرته یې روژه په یاد نه وه بیا یې روژه نه ماتیږي. (الخلاصة)

⇦ که چا یو شی روژه لرونکې ته ور واچول د هغه خوله خلاصه وه د هغه ستوني ته تېر شول نو روژه یې ماته ده قضاء ورباندې لازمه ده کفاره ورباندې نشته همدارنگه چا چې غسل کولو او اوبه یې تیرې شوې روژه یې ماته ده (السراج الوهاج)

⇦ هغه څوک چې ویده وي په خوب کې را پاڅیږي خوراک او څښاک وکوي روژه یې ماتیږي. (فتاوی قاضي خان)

⇦ چې داسې شی تېر کړي چې هغه په عادي حالت کې څوک نه خوري لکه خاوره یا یې کانې (تیږه) وړه شگه ، کاغذ، پخته (مالوچ) یا بل داسې شی یې تېر شي روژه یې ماته ده. (التبیین)

⇦ که وړوکې هګۍ وه د پوستکي سره يې تېره کړه همدارنګه که وچ دال يې وخوړل روژه يې ماته ده. (الخلاصة)

⇦ که خاوره يې وخوړه روژه يې ماته ده قضاء به يې راګرځوي او که د خاورې په خوراک عادت وو نو بيا به قضاء او کفاره دواړه واجب وي. (الظهيرية)

⇦ که د غاښ په مينځ کې يې کوم شی وو هغه چې د دال د وړوکې دانې څخه کم وو تېر يې کړل روژه نه ماتوي او که تردې زيات وو روژه ماتوي قضاء به راګرځوي. ( عالمګيري)

⇦ هغه وينه چې د غاښونو څخه را وزي که تر ناړو کمه وي هېڅ پروا نه کوي او که تر ناړو زياته او يا ورسره برابره وه او بيا يې تېره کړه روژه ماتوي. (عالمګيري)

⇦ همدارنګه که بل رنګين شی يې خولې ته ورغلل دهغه رنګ سره دده د خولې ناړې رنګينې شوې يعني هغه رنګ يې په ناړو غالب شو نو روژه يې ماته ده. (الخلاصة)

⇦ هغه شی چې نه خوړل کيږي پخپله ستوني ته تېر شي لکه مچ چې د انسان ستوني ته ورسيږي او تېر شي روژه نه ماتوي او که قصداً يې انسان تېر کړي بيا يې ماتوي. (شرح الطحاوي)

⇦ که چا ارګمی کولو خوله یې وازه کړه له کوم ځای نه یې په خوله کې د اوبو څاڅکی ور پرېوتلو او تېر شو روژه یې ماته ده . (السراج الوهاج)

⇦ همدرانګه که په واوره یا باران کې یې خوله پورته خوا ته خلاصه کړه او هغه یې خولې ته ورغلل روژه ماتوي (الظهيرية)

⇦ که ستوني ته یې د کوم شي ګرد یا لوګی ننوتلو روژه ماتوي قضاء به را ګرځوي (السراج الوهاج)

⇦ که د مخ خولې او یا اوښکې د روژه لرونکي خولې ته ننوتلې که لږ وې یو څاڅکی یا دوه نو روژه نه ماتوي او که دومره وې چې د هغې خوند یې په ټوله خوله کې محسوس شو نو بیا روژه ماتوي (الخلاصة)

⇦ هغه غوړ والی او یا لوندوالی چې د انسان بدن ته د څرمن د سورویو څخه ننوزي نو روژه نه ماتوي نو که چا په یخو اوبو کې و لمبل او د اوبو یخوالی یې په خپل بدن کې محسوس کړو روژه ورسره نه ماتیږي (عالمګیري)

⇦ که په سترګه کې یې کوم ډول دوایي واچوله اګر که د هغې خوند ده په خپل حلق کې محسوس کړو بیا هم روژه نه ماتوي او یا یې په سترګو کې داسې دوا واچوله چې د هغې رنګ وو

لکه رانجه چې بیا یې ناړې تف کړې دهغې دوا رنګ دده په ناړو کې ښکاره شو بیا هم روژه نه ماتوي (الذخیرة)

⇦ په قی کولو سره روژه نه ماتیږي که هغه پخپله وشي او یا انسان څه وکوي او قصداً قی را وباسي او که هغه د خولې نه بېرته و ګرځېدو او یا ده وګرځولو په ټولو صورتونو کې روژه نه ماتوي (النهر الفائق)

⇦ دا په هغه صورتونو کې چې دا قی ډوډۍ او یا ترخې اوبه وي او که د ا قی بلغم وي بیا روژه ماتوي. (الهدایة)

⇦ که په غوږ کې یې تېل واچول روژه ورسره ماتیږي (الهدایة) او که اوبه یې په غوږ کې و څڅولې بیا روژه ورسره نه ماتیږي.

⇦ که د ذکر په سر کې دوایي واچوي روژه نه ماتوي او که دا دوایي مثانې ته ورسیږي امام ابو یوسف رحمه الله فرمایي چې روژه ماتوي (التبیین)

⇦ او که زنانه څه دوا په خپل خاص اندام کې واچوي نو روژه ماتوي (الظهیریة)

⇦ روژه لرونکی به په استنجاء کې ډېر کوښښ نه کوي او که ډېر کوښښ یې پکې وکولو تردې چې د لاندې خوا نه د اوبو لوندوالی د انسان بدن ته ننوزي روژه ماتوي. (البحر الرایق)

# كفاره لازمونكي شيان

- چې د رمضان په روژه کې کفاره لازمه شي قضاء ورسره ضروري ده اګر که په کومه مسئله کې د قضاء په تکي تصريح ونشي.
- پداسې حالت کې چې روژه يې په ياد وي خوراک، څښاک يا جماع کول روژه ماتوي او قضاء او کفاره دواړه پرې لازميږي .
- او که پدې جماع کې يو طرف رضا نه وو د هغه سره په زور کېدل نو په هغه باندې صرف قضاء ده کفاره وربانديې نشته او که دواړه رضا وو نو بيا په دواړو باندې قضاء او کفاره لازم دي . (فتاوى قاضي خان)
- همدارنګه که باران يا واورې ته يې قصداً خوله ونيوله او هغه دده په خوله کې ور وغورځېدل او ده تېر کړل روژه ماته ده کفاره او قضاء پرې لازم دي. (عالمګيري) (مخکې هغه صورت تېر شو چې ده باران ته خوله نه وه خلاصه کړې او باران پکې ورغلو هلته صرف قضاء لازميږي)

⇦ همدارنګه تول هغه شیان چې د دوا لپاره خوړل کیږي چې ویې خوري روژه فاسده ده کفاره او قضاء به دواړه فرض وي.

⇦ تول هغه نباتات چې هغه په عادي حالت کې خلک خوري نو چې ویې خوري روژه پرې ماتیږي قضاء او کفاره دواړه پرې لازمیږي او هغه چې د خوړلو عادت یې نه وي بیا وربانديې صرف قضاء لازمیږي . (التبیین)

⇦ که چا مالګه و څکله نو روژه یې ماته ده صرف قضاء وربانديې فرض ده او که دی د مالګې د څکلو عملي وو بیا کفاره هم وربانديې ده (التبیین)

⇦ که انسان قی وکولو بیا یې ګمان شو چې پدې سره به دده روژه ماته وي نو بیا یې خوراک وکولو صرف قضائي لازمه ده کفاره وربانديې نشته او که دی پدې مسئله خبر وو چې په قی سره روژه نه ماتیږي نو بیا یې که خوراک وکولو کفاره وربانديې لازمه ده .

⇦ که چا په هېره سره خوراک وکولو بیا یې ګمان شو چې روژه خو مې هسې هم ماته شوه او خوراک ته یې ادامه ورکړه سره ددې چې دی پدې مسئله پوه وو چې په هېره سره که خوراک وشي روژه نه ماتیږي بیا یې هم خپله روژه ماته وګڼله

نو پدې صورت کې هم کفاره وربانديږ لازمه نه ده (عالمګيري)

⇦ که چا د ورځې شيطاني خوب وليدو (احتلام يې وشو) دده دا ګمان شو چې روژه مې ماته شوه بيا يې خوراک وکولو نو قضائي به راګرځوي او که ده ته مسئله معلومه وه چې په احتلام سره روژه نه ماتيږي نو بيا يې هم خوراک وکولو نو کفاره وربانديږ فرض ده ( الظهيرية)

# کفاره

⇦ مخکې تېر شول چې په کومو کسانو باندې کفاره فرض کيږي په چا باندې چې کفاره لازمه شي هغه به:

• يو غلام ازادوي (که چېرته غلام وي په پخوا وختونو کې به وو) .

• که دايې په وس نه وي نو بيا به متصلې دوه مياشتې روژه نيسي .

• که دايې نشوای کولی نو بيا په شپېتو مسکينانو ته خوراک ورکوي د صدقه فطر په اندازه . (عالمګيري)

⇦ که په يوه مياشت کې کفاره يو ځل وربانديږ واوښته څو ورځې وروسته يې بيا روژه وخوړه نو که د اول ځل روژې خوراک نه وروسته يې کفاره ورکړې نه وه نو بيا د دواړو لپاره

يوه كفاره كفايت كوي او د دواړو روژو لپاره به قضايي هم را ګرځوي او كه د اولې روژې كفاره يې وركړه بيا يې بله پسې وخوړه نو د دوهمې كفاره به بيا وركوي . (عالمګيري)

هغه فرضي روژې چې مسلسل نيول يې فرض دي په اوه ډوله دي.

١. د رمضان روژه

٢. د قتل كفاره

٣. د ظهار كفاره

٤. د قسم كفاره

٥. د روژې خوړلو كفاره

٦. معين نذر (چې معين كړل شوى وي چې مسلسلې به يې نيسم)

٧. د خاص قسم روژې (چې د خاصو روژو د نيولو قسم يې كړى وي)



# د روژې خوراک روا کونکي شيان

## ١. سفر

هغه سفر چې د روژې خوراک رواکوي هماغه سفر دی چې ددې کتاب په دوهمه برخه کې يې په مانځه کې تفصيل تېر شو چې يوه شپه او يوه ورځ لاره وي او دا سفر که په تکليفي توګه سره وي که په راحت سره وي مسافر ته د روژې خوراک روا کوي لکن بيا هم که هغه روژه ونيسي غوره خبره ده مخکې د مانځه په بحث کې تېرشول چې مونځ لکه روژه داسې نه دی په مانځه کې به خامخا قصر (د څلورو رکعتونو په ځای دوه رکعته) کوي او که څلور رکعته وکوي نو ګناه ده او په روژه کې که روژه ونيسي نو ښه خبره ده او که يې وخوري نو محض روا ده .

فرق يې دادی چې د مانځه په اړه آيت راغلی دی :

سورة النساء آية ١٠١

وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَقْصُرُواْ مِنَ الصَّلاَةِ إِنْ خِفْتُمْ أَن يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُواْ إِنَّ الْكَافِرِينَ كَانُواْ لَكُمْ عَدُوًّا مُّبِينًا .

ترجمه : او که تاسې په سفر کې وی او ددېنه ډارېدی چې کفار به تاسې ته ضرر ورسوي نو پرتاسې ګناه نشته چې خپل مونځونه لنډ کړئ بېشکه کافران ستاسې ښکاره دښمنان دي.

بیا په یو حدیث کې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې دا قصر قبول کړئ .

امام ابو حنیفه رحمه الله فرمایي دا امر د وجوب لپاره دی نو ددې امله قصر کول واجب دي .

بل په مانځه کې چې د څلورو رکعتونو په ځای دوه رکعتونه وشي نو دهغه پاتې شویو دوو رکعتونو بیا را ګرځول نشته او په روژه کې داسې نه ده کومه روژه چې وخوړله شي دهغې قضائي لازمه ده .

او د روژې په اړه چې کوم آیت راغلی دی په هغه کې الله تعالی مسلمانانو ته صرف اجازه ورکړې چې دوی روژه خوړلی شي او بل په هماغه ځای کې ورسره ویل شوي دي چې کومې روژې تاسې خورئ نو د هغې به وروسته بیا قضائي راوړئ .

سورة البقرة آية ١٨٤

فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ عَلَى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ وَعَلَى الَّذِينَ يُطِيقُونَهُ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ فَمَن تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَّهُ وَأَن تَصُومُواْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ

ترجمه : او هغه څوک چې وي نا جوړه يا په سفر وي نو په ده باندې دي په شمار نيول د نورو ورځو اراده لري الله په تاسې د اسانتيا او اراده نه لري په تاسې باندې د سختي او له پاره ددې چې پوره کړئ تاسې په شمار او چې د لويي سره ياد کړئ الله پدې چې هدايت يې کړی دی تاسې ته او د پاره ددې چې تاسې شکر وباسئ .

⇦ او که دا سفر د کوم روا کار لپاره وي او که د نا روا لپاره وي په هرصورت د روژې د خوراک د روا والي مخه نه نيسي (په هر صورت روژه خوړل پکې روا دي)

⇦ همدارنګه که څوک سفر صرف ددې لپاره کوي چې د روژې خوراک ورته روا شي نو بيا هم چې په سفر لاړ شي د روژې خوراک ورته روا شي لکن دا کار او دا حيله جوړول يې يو مذموم او بد عمل دی (فتاوی دارالعلوم ديوبند ج ٦ ص ٤٩٦)

⇦ په کومه ورځ کې چې سفر شروع کوي پدې ورځ کې روژه خوراک نه دی روا او که يې بيا هم وخوړه نو کفاره ورباندې نشته او که په خپل

ځای کې یې روژه وخوړه بیا یې سفر شروع کړو نو کفاره وربانديې لازمه ده . (محیط السرخسي)

⇦ د سفر موده او نور احکام تول داسې دي لکه ددې سلسلې په دوهم کتاب کې چې د مانځه په بحث کې په تفصیل سره تېر شوي دي چېرته چې د مانځه قصر ضروري شي هلته د روژې خوراک روا کیږي .

⇦ که مسافر له خپله کوره د سفر په نیت روان شي نو مخکې تېر شول چې ددې ورځې روژه به دی نه خوري ددې روژې ماتول نا روا دي لکن بیا یې هم که ماته کړه صرف قضاء پرې لازمه ده او که چېرته لږ لاړو هلته یې روژه ماته نه کړه بېرته د څه ضروري کار لپاره او د کوم شي د پاتې کېدلو له امله بېرته کور ته راغلو او په کور کې یې خوراک وکولو نو قضاء او کفاره به دواړه پرې لازم وي. (عالمګیري)

⇦ مسافر چې کله بېرته را ستون شي دخوړلیو روژو قضاء وربانديې لازمه ده او که د راستنېدو څخه یې وروسته هم روژې ونه نیولې نو چې بیمار شي د روژو د فدیې په اړه به وصیت کوي دا وربانديې لازم دي او که په همدې سفر کې وفات شي نو هغه روژې ده ته بښل شوي دي . (درمختار)

⇦ داسې تولې روژې چې د کوم شرعي عذر له امله پرېښودل شوي وي او تر اوسه هغه عذر په ځای پاتې دی دا معذور مسلمان وفات شو ددې روژو له ده څخه شریعت تر اوسه مطالبه نه کوي ځکه د کوم عذر له امله چې پرېښودل شوې وې هغه عذر تر اوسه پورې موجود دی او که هغه عذر لرې شو بیا ده سستي کوله او روژې یې ونه نیولې نو هرڅو ورځې چې ده مهلت پیدا کړی وي دهغه ورځو روژه وربانديې لازمه ده نو که دی بیمار شي وصیت کول وربانديې لازم دي د وصیت د احکامو مطابق به یې د پاتې مال نه فدیه ورکول کیږي.

## ۲. بیماري

دویم هغه عذر چې د روژې خوراک روا کوي بیماري ده .

⇦ هغه بېمار چې پدې ډاریږي که روژه وساتي نو بیماري یې زیاتیږي او یا یې د مرګ خطر وي او یا یې د کوم اندام د فلج کېدلو خطر وي ده ته د روژې خوراک روا دی چې کله جوړ شي بیا به یې قضائي را وګرځوي. (المحیط)

⇦ اوس دا به څنګه معلومیږي چې دده د مرګ او یا د بیماري د زیاتېدلو او یا د کوم اندام د فلج کېدلو خطر دی.

ددې لپاره ګڼې لارې دي .

١. ماهر مسلم او ایمان لرونکي ډاکټر ورته ووایي (فتح القدیر)

٢. په بیمار څه داسې نښې ښکاره شي چې دهغې نه معلومیږي چې ممکن که دی روژه وساتي په پورتنیو خطرونو کې به کوم یو را مینځ ته شي.

٣. تجربه : ددې تجربه شوې وي چې په موجوده بیماري کې که څوک روژه ونیسي نو پورتني خطرونه را مینځ ته کیږي .

⇦ که چاته بیماري په نمبر راځي او د بیماري د راتلو نه مخکې ده ته معلومه وي چې پدې ورځ په ما باندې بیماري راځي نو اوس یې د بیماري د راتلو نه وړاندې روژه ماته کړه نو پروا یې نشته د مثال په ډول لکه د ملاریا یو ډول تبه چې یوه ورځ نه وي بله ورځ راځي او داسې نور..

⇦ که چېرته د بیماري نه ښه شو او دومره وخت ورسره وو چې قضائي پکې را وګرځوي ده را ونه ګرځولې نو ددې په اړه به وصیت کوي ورثه به دده د هرې روژې پر ځای د صدقه فطر په اندازه فدیه ورکوي او که ده وصیت ونه کولو په ورثه وو یې ورکول لازم نه د ي او که هغوی یې دده د وصیت نه بغیر هم ورکوي نو کولی شي

دا لـه ده سره د وارثـانـو يـو احسان او نـيکي ده.

# ٣. حـمـل او رضـاع

( د زنـانـه وو لـپاره پـه ګـېډه مـاشوم درلـودل او يـا مـاشوم تـه شودې ورکـول . )

- هغه زنـانـه چې پـه ګـېډه يـې مـاشوم وي او پـدې ډاريـږي کـه دا روژه ونـيسي ددې د صحت يـا ژونـد او يـا د مـاشوم د صحت او يـا ژونـد خطر دی نـو دا کـولـی شي چې روژه وخـوري . (عـالـمګـيـري)
- پـه همدې ډول هغه زنـانـه چې مـاشوم تـه شودې ورکـوي او دهغه مـاشوم خـوراک صرف ددې شودې وي نـو دا ډاريـږي کـه دا روژه ونـيسي نـو يـا ددې صحت خرابـيـږي او يـا مـاشوم وږی کـيـږي نـو دا کـولـی شي روژه وخـوري چې کـلـه دا دواړه مـشکلات ختم شول نـو بـيـا بـه د خـوړل شويـو روژو قـضائـي را وګـرځـوي. (عـالـمګـيـري)

# ٤. حیض او نفاس

⇦ کله چې زنانه په میاشتینی بیماري (حیض) او یا نفاس کې وي نو روژه خوراک ورته روا وي چې کله یې دا بیماري ختمه شي نو بېرته به خپلې روژې شروع کړي او چې کله روژه ختمه شي نو بیا یې چې کله غوښتل ددې روژو قضائي به را وګرځوي.

⇦ زنانه به هغه وخت خپله روژه ماتوي چې دا په یقیني ډول د حیض بیماري ووینې که دې په دې ګمان روژه ماته کړه چې اوس به مې بیماري شروع کیږي او هغه شروع نه شوه نو په دې باندې کفاره وواښته (الظهیریة)

# ٥. د هلاک ویره

هغه کس چې په داسې ځای کې روژه نیسي چې هلته سخته ګرمي وي او دی سخت کار کوي او ددې ویره پیدا شي که دی خپلې روژې ته دوام ورکړي نو هلاکیږي او یا لېونی کیږي نو پدې صورت کې هم دی روژه خوړلی شي قضائي به یې بیا را ګرځوي (فتح القدیر)

# ٦. د عمر زیاتوالی

⇦ هغه شیخ فاني ناریـنه یا زنانه د ډېر عمر خاوند چې د ډېر عمر له امله روژه نشي نیولی هغه د روژه وخوري او د هرې روژې په ځای دې یو مسکین ته خوراک ورکوي (الهدایة)

⇦ شیخ فاني دا هغه کس وي چې هروخت یې صحیت د خرابېدو خواته روان وي تردې چې آخر مړ شي . (البحر الرائق)

⇦ دا فدیه بیا دده خوښه یا د په یو ځای د میاشتې په اول کې ورکړي او یا یې دې د میاشتې په آخر کې ورکړي (النهر الفائق)

⇦ لکن که د روژې په سر کې یې د ټولې میاشتې فدیه ورکړه بیا د روژې په مینځ کې په روژو نیولو و توانېدو (بیا یې روژه نیولی شوای) اوس یې فدیه کار نه ورکوي روژې به نیسي او هغه فدیه یې خیرات تللې ده (النهایة)

⇦ که د قسم روژې وربانـدې وې او یا د خطاء قتل دوه میاشتې روژې وربانـدې وې او ویې نه نیولې تردې چې شیخ فاني شو نو اوس یې روژې نیول تر وس تېرې وې غوښتل یې چې فدیه یې په ځای ورکړي دا نه صحیح کیږي (شرح الطحاوي)

⇦ که بیمار روژه خوړه او یا مسافر روژه خوړه او په همدې سفر او همدې بیمارۍ کې وفات شو

لکه مخکې چې تېر شول ددې روژو نیول ده ته معاف شول او په ده باندې لازم هم نه دي چې ددې روژو په اړه وصیت وکوي چې دده نه د فدیه ورکړي لکن که بیا هم دی وصیت وکوي نو دده وصیت صحیح دی ورثه به یې فدیه ورکړي دده د پاتې مال د دریمې برخې نه . (عالمګیري)

⇦ مجاهد که پوهېدو چې نن به د کفارو سره جنګ کیږي او که دی په روژه کې وي نو کمزوری به شي نو هغه ته روا ده چې روژه وخوري قضائي به یې بیا را ګرځوي او که ده روژه وخوړه بیا هم جنګ ونشو نو په ده باندې کفاره نشته صرف قضاء به راګرځوي. (عالمګیري)

## نکته :

⇦ که چا د کوم عذر له امله روژې وخوړلې او بیا یې قضایي را ونه ګرځولې تردې چې د بل کال روژه وربانده راغله نو اوس به ددې کال روژې نیسي او قضایي به یې بیا هم په غاړه پاتې وي ددې روژې نه وروسته به یې ونیسي. (النهر الفائق)

⇦ هغه کس چې نفلي روژه نیولې وي هغه به هم د عذر نه بغیر نه ماتوي (محیط السرخسي)

- د نفلي روژې لپاره د چا مهماني هم عذر کېدلی شي (عالمګیري)

- لکن که داسې چا مهماني کړې وي چې هغه د روژه لرونکي صرف په ورتلو هم رضا کیږي نو بیا د روژه ورته نه ماتوي او که هغه پدې خفه کېدو چې دی هلته لاړ شي او خوراک ونه کوي نو بیا د خوراک وکوي د روژې په ځای به بله ورځ روژه ونیسي امام شمس ا لایمه الحلواني پدې ځای کې فرمایي که یې په ځان باندې یقین وو چې بله ورځ یې قضائي را ګرځولی شم نو سم د لاسه د روژه ورته ماته کړي او که په ځان یې اعتبار نه وو نو که هغه نه خفه کیږي نو نه دي ماتوي دا ټولې خبرې په هغه صورت کې دي چې تر زوال وړاندې وي او که زوال پرې تېر شو یعني تر غرمې وروسته وي نو بیا چې ډېر سخت حالت نه وي لکه د مور پلار عاق کېدل او د هغوی خفه کېدل نو بیا د نه ماتوي (المحیط)

# روژه نذر منل

⇦ څوک چې د کوم کار کېدلو او یا نه کېدلو له امله روژه نذر ومني او هغه کار بیا داسې وشي لکه څنګه چې ده غوښتي وو نو معلوم کړل شوی نذر وربانددې واجب کیږي د مثال په توګه څوک ووایي چې زه که ددې بیماري نه جوړ شوم دری ورځې به روژه نیسم نو چې جوړ شي دا دری ورځې روژه وربانددې واجب ده .

⇦ که چا په ځان باندې د اختر د ورځې روژه نذر کړه د مثال په توګه که زه ددې بیماري نه جوړ شوم داختر د ورځې روژه دې په ما وي نو چې جوړ شي د اختر د ورځې روژه وربانددې واجبه ده سره ددې چې مخکې تېر شول د اختر په ورځ روژه نیول مکروه دي لکن بیا یې هم که د اختر په ورځ روژه ونیوه له نذر څخه خلاصیږي (هدایة)

⇦ نذر په هغه ځای کې صحیح کیږي چې هلته یې امکان د پوره کولو وي د مثال په ډول که چا وویل په ما د د پرون روژه نذر وي نو دا نشي پوره کېدلی نذر صحیح نه دی او دا جمله یې هېڅ معنی نلري (البحر الرائق)

⇦ که چا وویل په کومه ورځ چې دا کار وشي زه به هغه ورځ روژه نیسم هغه کار په داسې وخت

کې وشو چې ده په هغه ورځ کې ددې کار نه وړاندې خوراک یا څښاک کړي وو او یا زنانه وه او په هغه ورځ دا په میاشتنۍ بیمارۍ کې وه نو پدې خبره په ده باندې هېڅ هم نه واجب کیږي (فتاوی قاضي خان)

⇦ او که هغه کار په سحر وختي کې (تر زوال وړاندې) وشو چې ده خوراک او څښاک نه وو کړي نو له هماغه وخت نه به روژه وساتي او که هغه کار د شپې وشو نو بیا هم څه شی نه دي لازم. (عالمګیري)

⇦ که چا وویل که دا کار وشو په ما د یوې ورځې روژه ده نو د یوې ورځې روژه وربانديې واجب شوه معینه نه ده چې څه وخت یې ونیوه صحیح ده (عالمګیري)

⇦ او که یې وویل چې په ده باندې د نیمې ورځې روژه ده نو پدې خبره په ده باندې هېڅ شی نه واجب کیږي . (عالمګیري)

⇦ او که یې متعددې ورځې په ځان روژه نذر کړه نو چې هرڅو ورځې یې یادې کړې همدومره ورځې وربانديې واجب کیږي بیا دده خوښه ده که متصلې روژې نیسي او که یې بیلې بیلې نیسي او که په ځان یې نذر کړې وه چې متصلې به لس ورځې روژه نیسي نو بیا به یې متصلې نیسي او که یې په ځان متصلې روژې نذر کړې بیا یې

یوه پکې وخوړه او یا زنانه پکې په میاشتنۍ بیماري باندې بیماره شوه په هر صورت به یې له سر نه شروع کوي او هرځو ورځې یې چې په ځان لازمې کړې وې پوره کوي به یې. (السراج الوهاج)

- که یې د نذر کولو په وخت کې وویل که دا کار وشو نو زه به روژه نیسم نو یوه روژه پرې لازمه ده او که یې وویل زه به روژې نیسم نو درې روژې پرې واجبې شوې (که یې د معلوم عدد نیت نه وو کړی) او که یې وویل زه به ډېرې روژې نیسم نو بیا لس روژې پرې واجبیږي (که یې د خاصو ورځو نیت کړی وو د مثال په ډول ۱۵ یا ۲۰ او یا زیاتې بیا هماغه عدد پرې واجبیږي) (عالمګیري)
- که یې وویل یو څو لس ورځې روژې به نیسم نو دیارلس ورځې پرې واجبیږي (فتح القدیر)
- که یې وویل دومره دومره روژې به ونیسم نو بیا وربانډې ۱۱ روژې واجبیږي او که یې وویل دومره او دومره روژې په نیسم بیا وربانډې ۲۱ روژې واجبیږي (فتح القدیر)
- که یې وویل د جمعې روژه به نیسم نو اوه ورځې روژې وربانډې واجبیږي او که یې په نیت کې د جُمعې ورځ وه نو بیا د جُمعې د ورځې روژه وربانډې واجب ده (السراج الوهاج)

⇦ که یې وویل د جُمعو روژه به نیسم امام ابو حنیفه رحمه الله فرمایي د لسو جُمعو روژه وربانديې ده او امام محمد او امام ابو یوسف رحمهما الله فرمایي د ده د ژوند د ټولو جُمعو د ورځو روژه وربانديې ده او که یې وویل ددې میاشتي د جُمعو روژه به نیسم نو پدې میاشت کې په راتلونکې هره جُمعه په ده روژه لازمه ده (الظهیریة)

⇦ که یې وویل په پنجشنبه به روژه نیسم نو نیږدې پنجشنبه وربانديې لازمه ده او که یې دا نیت کړی وو چې څومره پنجشنبې راځي ددې ټولو روژه وربانديې واجبه ده نو نیت یې صحیح دی بیا به هره پنجشنبه روژه نیسي. (المحیط)

⇦ که چا په ځان نذر کړو او وروسته تریېنه عاجز شو یا بیمار شو او یا یې ژوند سخت وو سخت کار یې کولو او روژه یې نشوای نیولی نو د هرې روژې لپاره به یوه صدقه فطر ورکوي او روژې د خوري او د الله تعالی نه به د بښنې سوال کوي . (عالمګیري)

⇦ او که دا روژې یې په اوړي کې د ګرمي د امله نشوای نیولی او یا یې د بل کوم عذر له امله وخوړلې نو بیا د فدیه نه ورکوي صبر د وکوي چې هوا یخه شي په ژمي کې به یې ونیسي (خو دا په هغه صورت کې کېدلی شي چې د ټول عمر روژه یې په ځان نه وي نذر کړې او که یې په

ځان د ټول عمر روژه نذر کړي وه بیا خو یې په بل وخت کې هم قضایي نشي راګرځولی) . (فتح القدیر)

⇦ که چا ویل غوښتل چې دی به د یوې ورځې روژه نیسي خبره ترې خطا شوه او ویې ویل چې دی به د یوې میاشتې روژه نیسي اوس په ده باندې د میاشتې روژه لازمه ده او که یې په ځان د میاشتې روژه نذر کړه نو د دېرشو ورځو روژه په ده لازمه ده که یې وخت تعین کړی نه وو سم د لاسه یې نیول ورباندې لازم نه دي چې هروخت یې نیسي دده خوښه ده په وروسته والي یې ګناه نشته (السراج الوهاج)

⇦ که یې وویل چې دی به یوه میاشت روژه نیسي نو دده اختیار دی که مسلسلې یې نیسي او که بیلې بیلې یې نیسي او که یې وویل چې دی به یوه میاشت مسلسلې روژې نیسي نو بیا مسلسلې لازمې دي لکه مخکې چې تېر شول که یې یوه ورځ هم پکې قضائي وکړه له سر نه به یې شروع کوي.

⇦ که چا په ځان نذر کړې چې یو کال روژه به نیسي نو یو کال به یې ونیسي او د اخترونو او ایام تشریق به بیا قضایي راوړي (الهدایة)

⇦ که يې وويل لکه د روژې داسې يوه مياشت روژه به نيسم نو که يې مطلب دا وو چې داسې مسلسلې نو همداسې مسلسلې به يې نيسي او که يې مطلب وو چې په عدد کې داسې نو بيا به ۳۰ روژې نيسي دده خوښه که يې سر بله پسې (مسلسلې) او که يې بيلې بېلې نيسي (المحيط)

⇦ که زنانه په ځان د يو کال روژه نذر کړه نو يو کال روژه به ونيسي او د مياشتنۍ بيماري ورځې به شمار کړي دهغې به قضايي راوړي (فتاوای قاضي خان)

⇦ که نذر يې تر کوم شي پورې تړلی وو د مثال په توګه ويلي يې وو که فلانی په خير راغلو نو زه به ۱۰ روژې نيسم اوس يې دهغه تر راتلو مخکې روژې ونيولې نه دي صحيح چې هغه راشي بيا به يې نيسي (فتاوی قاضي خان)

⇦ که چا په ځان د يوې مياشتې روژې نظر کړې روژې يې شروع کړې وې لکن پوره يې نه کړې چې بيمار شو اوس به وارثانو ته وصيت کوي چې د پاتې روژو پر ځای دده له لوري نه فديه ورکړي

# د روژې مکروهات

⇦ په روژه کې د ژاولو ژول مکروه دي. (فتاوی قاضي خان)

دا هغه ژاولي دي چې مخکې ژول شوې وي او هېڅ ډول خوند او ذائقه یا خوږ والی پکې نه وي او هغه ژاولې چې مخکې نه وي ژول شوي او خاص خوند ولري هغه روژه ماتوي . (المحیط)

⇦ بغیر د ضرورت نه د کوم شي خولې ته اچول، د کوم شي ژول یا یې خوند کتل مکروه دي (کنز)

⇦ دا په هغه صورت کې چې څه شی صرف په ژبه کېښودل شي او خوند یې وکتل شي او که تېر کړل شي بیا روژه ماتوي .

⇦ که چېرته ضرورت وو د مثال په ډول د کومې ښځې خاوند بد اخلاق وو نو که په مالګه کې کمښت یا زیادت راشي مشکل ترې جوړیږي نو ښځه کولی شي چې د ژبې په سر یې وګوري بغیر ددېنه چې کوم شی یې تېر شي همدارنګه که وړوکی ماشوم وي او نرم شی نه وي چې هغه ته ورکړل شي او کلک شی وي بل داسې څوک نه وي چې د هغه روژه نه وي چې هغه یې ورته وژویې نو روژه لرونکی انسان یې د ورته وژویي بیا یې د هغه ته په خوله کې ورکړي او کوښښ به

کوي چې هېڅ شی یې تېر نه شي نو ددې عذر له امله یو شی ژولی شي . (النهر الفائق)

⇦ ددې لپاره چې د یو شي کیفیت (ښه والی یا بد والی) معلوم کړي دهغه شي څکل او مزه کتل په هر صورت مکروه دي د مثال په توګه د شهدو یا غوړیو او یا داسې بل شي کتل. (فتاوی قاضي خان)

⇦ د روژه لرونکي انسان لپاره په استنجاء کې ډېر وخت تېرول هم مکروه دي همدارنګه په خوله او په پوزه د اوبو په تېرولو کې هم ډېر کوښښ (مبالغه) کول مکروه دي . (السراج الوهاج)

⇦ د اوداسه نه بغیر ورته په خوله اوبه تېرول هم مکروه دي . (عالمګیري)

⇦ په خوله کې ناړې جمع کول او بیا په یو ځای تېرول هم مکروه دي. (الظهیریة)

⇦ مسواک وهل مکروه نه دي امام ابو یوسف رحمه الله فرمایي که په اوبو مسواک لوند کړي بیا یې استعمالوي نو دا مکروه دی او هغه چې تازه وي او په خپله لوندوالی هغه بالاتفاق مکروه نه دی (فتاوی قاضي خان)

⇦ سترګې تورول او بریتونه غوړول مکروه نه دي . (کنز الدئائق)

⇦ که په ځان یې د بې اختیاره کېدو نه یقین نه وو نو د شهوت قبلة اخستل هم مکروه دي او که په ځان یې یقین وو چې له اختیار څخه نه وزي بیا مکروه نه ده او په شهوت سره د چا سره لاس لګول هم د قُبلې حکم لري (یعني که په ځان یې یقین وو نو مکروه نه دی او که په خپل ځان باندې بې باوره وو بیا مکروه دی. (التبیین)

⇦ که څوک د شپې جنب شي او سحر په جنابت کې را ویښ شي روژې ته یې هېڅ نقصان نه رسیږي . (محیط السرخسي)



# د روژې مستحبات

۱. پېشمنی

رسول الله ﷺ د پېشمني په اړه فرمايي :

تسحروا فإن في السحور بركة

يعني پيشمنی کوئ په پېشمني کې برکت دی .

پدې حديث باندې عمل په لږ خوراک او ډېر خوراک سره کيږي حتی که څوک د پېشمني په وخت را پاڅيږي او يو ګيلاس يا تردې هم لږ اوبه هم وڅښي نو پدې حديث عمل وشو .

- پېشمنی کول مستحب دي او وخت يې د شپې آخر دی چې شپه کله په شپږو برخو تقسيم کړل شي نو په شپږمه برخه کې يې د پېشمني وخت دی او د پېشمني وروسته کول مستحب دي. (النهاية)
- د پېشمني دومره وروسته کول مکروه دي چې د سحر د راختلو وېره او شک پکې را پيدا شي . (السراج الوهاج)
- د پېشمني خوراک سنت دی د شپې د نيمې نه وروسته چې هر وخت خوراک وکول شي سنت ورباندې پوره کيږي لکن غوره يې آخري وخت دی که چېرته د پېشمني د خوراک په دوران کې

موذن تر سحر راختلو څخه وړاندې اذان وکولو دا اذان د خوراک ممانعت نه کوي ترڅو چې سحر نه وي راختلی خوراک کېدلی شي دا پېشمنی پخپله د روژې د نیت لپاره کافي دی لکن بیا هم که په خوله ووایي و بصوم یو غد نویت من شهر رمضان (سبا مې د رمضان د روژې نیت کړی دی) نو غوره خبره ده .

(جواهر الفقه)

⇦ د حضرت زید بن ثابت ❾ څخه روایت دی چې مونږ د رسول الله ♈ سره په یو ځای پېشمنی وکولو بیا رسول الله ♈ په مانځه و دریدو حضرت انس ❾ فرمایي ماترې پوښتنه وکوله چې د ستاسې د پېشمني د ختمېدو او سحر راختلو په مینځ کې څومره فرق وو؟ ده راته وویل د ۵۰ آیتونو د لوستلو په اندازه (صحیح بخاري)

⇦ لکه د نکاح او جنګ د اعلان لپاره چې د دف غږول راغلي دي په همدې ډول د پېشمني او روژه ماتي یا د میاشتې د لېدلو لپاره هم د خلکو د خبرولو لپاره د دف غږول روا دي لکن پدې شرط چې د باجي او نورمیوزیک په ډول نه وي په خاصه طریقه وي .

(فتاوی رحیمیه/شامي ج۵)

## ۲. د پېشمني وروسته کول

مخکې يې دليل تېر شو چې د رسول الله ﷺ د پېشمني او د سحر د مانځه په مينځ کې صرف دومره وخت وو چې په هغې کې پنځوس آيتونه تلاوت کېدلی شول .

۳. په خورما باندې روژه ماتول

د رسول الله ﷺ د يو حديث له مخې که کېدای شي په تازه خورما د روژه ماته کړي کنه نو په وچه خورما د ماته کړي او که دا هم نه وي نو په اوبو دې ماته کړي (ابو داود)

## ٤. خیرات زیات کول

د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه یو حدیث روایت شوی دی هغه فرمایي : رسول الله ϒ به هر وخت سخاوت کولو او په روژه کې به تر هر وخت نه زیات سخي وو .

## ٥. د روژه ماتي په وخت دعا کول

رسول الله ϒ فرمایي دری کسان دي چې د هغوی دعا نه رد کیږي روژه لرونکی ترڅو یې چې روژه ماته کړې نه وي ، عادل بادشاه او مظلوم (الترمذي)

٦. تلاوت زیات کول

٧. په هر نېک کار کې کوښښ کول

٨. د جنګ او لانجو څخه ځان ساتل.

٩. کله چې لمر پرېوزي بیا په روژه ماتي کې تادي کول

١٠ . خپله ژبه له هر ډول بدو خبرو او بدو الفاظو څخه ساتل .

# دروژې ادبونه

فرضي روژه په مسلمانانو باندې په کال کې يو ځل راځي او د طب او حکمت له مخې دا دبدن لپاره ډېره فايده منه وي او د هر طرف نه دانسان لپاره ګټه ده او د هېڅ قسم تاوان تصور پکې نشته او هغه کسان چې د سفر او بېماري له وجې يې نشي نېولى الله تعالى هغوى ته د خوړلو اجازه هم کړېده او عامو مسلمانانو ته په کار دى چې په ډېره مينه يې انتظار وکوي او راتلو نکي يو څو ادبونه دي چې ستاسې فام ورته را اړوم :

☚ د روژې د مياشتې استقبال کول:

دروژې د مياشتې له راتلو مخکې بايد انسان خپل ذهن دهغې د استقبال لپاره تيار کړي او دا مياشت د الله تعالى له طرفه يو راغلى رحمت و ګڼي او له راتلو سره يې بايد هېڅ قسم خستګي او ناراحتي ښکاره نه کړي .

☚ دمياشتې د لېدلو کوښښ کول :

مسلمانان بايد په ډېره مينه اوشوق سره د روژې د سپوږمۍ د ليدلو کوښښ وکوي او کله يې چې ويني نو د مياشتې د ليدلو دعا د ولولي :
اللهم اهله علينا بالامن والايمان و السلامة

و الاسلام اللهم نسئلك خيرها و خير ما فيها و نعوذ بك من شرها و شر ما فيها .

☛ پدې مياشت کې په خپل عبادت کې زياتوالی راوستل

مسلمان بايد د روژې په مياشت کې په خپل عبادت کې زياتوالی او خاص فرق راولي او د فرضو نه علاوه په نفلونو کې هم زيادت وکوي ځکه پدې مياشت کې نفل د فرضو ځای نيسي او فرض د څو چنده ثواب سره قبليږي .

☛ درمضان روژې ټولې نيول:

په رمضان کې مسلمان بايد په ډېره مينه ټولې روژې ونيسي لکن د کوم عذر له امله يې که ونشو کولی چې روژه ونيسي نو بايد بيا هم د مياشتې د برکت لپاره د خلکو په وړاندې خوراك او څښاك ونه کوي .

☛ پدې مياشت کې تلاوت زيات کول :

ددې مياشتې له قران کريم سره خاص مناسبت دی بايد ټول مسلمانان پدې مياشت کې د تلاوت خاص مراعات وکوي او څومره يې چې په وس پوره وي بايد دومره تلاوت وکوي .

☛ د تراويح اهتمام کول :

تراويح ددې مياشتي يو خاص سنت دي بايد ټول مسلمانان يې په شوق سره وکوي او په ټولو

تراويحو کې يو ځل د قران کريم ختم هم سنت دی .

☚ په روژه کې له خلکو سره نېك اخلاق کول :

د روژې په حالت کې بايد روژه لرونکی له خلکو سره په ډېره ښه وضع باندې او ښو اخلاقو باندې خبرې وکوي ترڅو داسې ښکاره نشي چې دی د روژې له امله غصه کوي او دده حوصله کمه شوېده .

☚ بغير د رمضان څخه روژه لرونکی بايد کوښښ ونه کوي چې خلك يې په روژه خبر شي :

کله چې بغير د رمضان نه د چا روژه وي بايد خلکو ته يې د ور ښکاره کولو کوښښ ونه کوي ددې له امله بايد روژه لرونکی تازه وي ترڅو د بل چا پرې شك نه شي .

☚ دروژې تکليفونه په خوشحالۍ سره قبلول:

روژه لرونکی بايد د روژې تکليفونه لوږه ، تنده او کمزوري په ورين تندي قبول کړي او بيا بيا يې بايد دخلکو په وړاندې شکايت ونه کوي لدې څخه ده ته هېڅ فايده نه رسيږي او نه پکې څه کمښت راځي .

## نصيحت

لاندې ځو ټکو ته ستاسې فام را ګرځوم چې علماء کرام په روژه کې د هغه شیانو په اړه زیات ټینګار او نصحیت کوي.

١. له خپلو تېرو ګناهونو توبه وباسئ او په راتلونکې کې یې د نه کولو ټینګه اراده وکوئ .

٢. کوښښ وکوئ چې د ټول بدن مو روژه شي غوږونه سترګې لاسونه پښې خوله ژبه ټول اندامونه له ګناه څخه وژغورئ .

٣. هروخت په خاصه توګه په رمضان کې ټول فرض واجب او سنت مونځونه په ښه توګه اداء کړئ او ځومره مو چې وس وي په نفلو کې زیادت وکوئ .

٤. هروخت په خاصه توګه په روژه کې یقیني کړئ چې پنځه وخته مونځ مو په جوماتکې او په جمع سره وي .

٥. د رمضان یو خاص سنت دی چې تراویح ورته وایي د زړه د اخلاص نه یې په سمه توګه د اداء کولو کوښښ کوئ تر بل رمضان پورې بیا تاسې ته نه راځي او کېدای شي چې دا ستا د ژوند آخري رمضان وي.

٦. د شپې مونځ هروخت ډیر ثواب لري او په خاصه توګه په روژه کې چې د نفلو ثواب د فرضو سره برابر وي نو کوښښ وکوئ چې د پیشمني تر څنګ د شپې مونځ درڅخه پاتې نشي .

۷. په دېرشو ورځو کې چې هره ورځ لږ تر لږه يوه سپاره تلاوت کړل شي نو قران کريم به لږ تر لږه يو ځل ختم شي که د زيات تلاوت وس مو نه وي نو دا يوه سپاره خو لږ تر لږه بايد تلاوت کړئ .

۸. رمضان د قران کريم مياشت ده په همدې مياشت کې نازل شوی دی کوښښ کوئ چې څومره کېدلی شي لږ تر لږه يو څو آيتونه روزانه ياد کړئ .

۹. د قران کريم نه وروسته زمونږ د لارښونې لپاره حديثونه دي کوښښ وکوئ چې دهغې مطالعه وکوئ او ځينې ترېنه ياد کړئ .

۱۰. د خپلوانو د حالاتو پوښتنه کوئ که مو په وس وي د محتاجو خپلوانو سره مرسته وکوئ ترڅو په هغوی باندې په رمضان کې مشکلات يو څه سپک او يا کم شي .

۱۱. کله چې روژه لرونکي ته څوک روژه ماتی ورکړي الله تعالی ده ته د يوې روژې ثواب ورکوي کوښښ کوئ چې لږ تر لږه د يوه روژه لرونکي روژه ماتی ورته برابر کړئ .

۱۲. د رمضان د مياشتې هره ثانيه او دقيقه قيمتي ده د سحر او ماښام د اذکارو سره کوښښ کوئ چې ټوله ورځ مو الله تعالی ياد وي او ستاسې ژبه د هغه په ذکر باندې لګيا وي.

۱۳. د څاښت مونځ غوره مونځ دی هر وخت یې کوښښ کوئ په خاصه توګه په رمضان کې چې په نفلو د فرضو ثواب ورکول کیږي کوښښ کوئ چې درڅخه پاتې نشي .

۱٤. دیني علم زمونږ د ژوند سرمایه او په آخرت کې د خوشحالي سبب دی کوښښ کوئ چې هروخت څه نا څه زده کړئ په خاصه توګه په روژه کې کوښښ وکوئ چې قیمتي وخت مو د دین په زده کولو کې مصرف شي.

۱٥. څو ځله مخکې تېر شول چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایل د روژه لرونکي دعا الله نه رد کوي ټوله ورځ د ډېرې دعا کولو کوښښ کوئ په خاصه توګه د روژه ماتې په وخت کې ستاسې دعا قبول ته ډېره نېږدې وي ډېر دعاګانې وغواړئ.

۱٦. په روژه کې عام مسلمانان الله تعالی ته تر بل وخت یو څه ډېر نېږدې وي په اکثرو مسلمانانو باندې پدې میاشت کې نصیحت ښه اثر کوي چېرته چې څوک وینئ چې څه ناروا کوي کوښښ کوئ چې هغه سمې لارې ته د الله د رضا لپاره را وغواړئ او په خوږو الفاظو هغه د حق لارې ته متوجه کړئ.

۱۷. پدې میاشت کې خپل ټول تېر شوي خپلوان او پلرونه او نیکونه په خپلو دعا ګانو کې یاد ساتئ ستاسې دعا یوازینی هغه شی دی چې تاسې یې دوی ته ورکولی شئ نو کوښښ کوئ چې د ځان سره

سره خپلو ټولو مسلمانانو ورونو ، خويندو او مخکې تېرو شويو ته دعا وکوئ (امید لرم چې ددې ټکو لیکونکي ته هم په خپله دعا کې یوه برخه ورکړئ) . الله تعالی د ستاسې دعاګانې ستاسې د خپل ځان او ټولو مسلمانانو په حق کې قبولې کړي.



# اعتکاف

اعتکاف په جومات کې د اعتکاف د نیت سره پاتې کېدلو ته وایي (النهایة)

دا کله واجب وي چې انسان یې په ځان نذر کړي او کله سنت موکد وي دا د رمضان په آخرو لسو ورځو کې کول دي (فتح القدیر)

## د اعتکاف شرطونه

۱. اسلام

تر هرڅه د وړاندې به اعتکاف کوونکی مسلمان وي کافر نشي کولی چې د عبادت په نیت په جومات کې حصار شي او یا اعتکاف وکوي په هغه باندې تر هغه وخته پورې عبادتونه نشته ترڅو چې په اسلام مشرف شوی نه وي.

۲. د حیض، نفاس او جنابت نه پاکي.

ځکه ترڅو چېددې شیانو څخه زنانه پاکه نه وي هغوی مونځ نشي کولی او نه روژې نیولی شي او نه اعتکاف ته کېناستلی شي.

۳. نیت

که د اعتکاف د نیت نه بغیر په جومات کې پاتې شي نو دا اعتکاف نه دی (معراج الدراية)

## ٤. جومات

⇦ په هغه جومات کې اعتکاف صحیح دی چې پنځه وخته پکې اذان کیږي او پنځه وخته پکې جمع کیږي (عالمګیري)

⇦ غوره اعتکاف هغه دی چې په مسجد حرام (مکه مکرمه) کې وي او بیا په دوهمه مرتبه کې هغه اعتکاف دی چې په مسجد نبوي کي وې په دریمه مرتبه کې هغه اعتکاف دی چې په بیت المقدس کې وي بیا هغه اعتکاف غوره دی چې په جامع جومات کې وي بیا په هغه جومات کې غوره دی چې اهل یې زیات وي (التبیین)

⇦ زنانه که اعتکاف کوي نو په کور کې دې د یوې کوټې په کونج کې ځان ته د کېناستلو ځای جوړ کړي هغه ځای ددې لپاره د جومات حکم لري او دا د له هغه ځای نه د انساني ضرورتونو پرته نه راوزي . (شرح المبسوط للسرخسي)

⇦ که زنانه په جومات کې اعتکاف وکولو دا هم صحیح ده لکن مکروه ده او په کور کې یې اعتکاف تر جومات غوره دی او بیا یې دکلي جومات ددې په حق کې تر جامع جومات غوره دی (محیط السرخسي)

٥. روژه

⇦ د سنت او واجب اعتکاف لپاره روژه هم ضروري ده او د نفلي اعتکاف لپاره د روژې او نه د وخت پابندي شته .

⇦ که څوک جومات ته ننوتل او ددې نیت یې وکولو چې ترڅو چې وتلی نه یم دلته به په اعتکاف کې وم دا نیت یې صحیح دی او دلته پاتې کېدل یې نفلي اعتکاف دی (التبیین)

⇦ او هغه اعتکاف چې په ځان یې نذر کړی وي د هغه سره به روژه هم نیسي اګر که ده داسې ویلي وي په ما دې د یوې میاشتې اعتکاف نذر وي لکن بغیر د روژې نو په دې صورت کې به هم روژه نیسي او اعتکاف به کوي (الظهیریة)

⇦ که چا په ځان باندې د ټولې روژې اعتکاف نذر کړو نو دا نذر یې صحیح دی ټوله روژه به اعتکاف کوي او که یې ونه کولو نو بیا به د روژې نه وروسته بله مکمله میاشت روژه نیسي او اعتکاف به کوي (المحیط)

⇦ که یې ددې اعتکاف قضایي را ونه ګرځوله تردې چې د بل کال رمضان پرې را ورسېدو اوس پدې رمضان کې د تېر رمضان قضایي اعتکاف نه کیږي او هغه یې تر اوسه په غاړه پاتې دی د

رمضان څخه به یې وروسته را وګرځوي (عالمګیري)

⇦ هغه زنانه چې خاوند یې په کور کې وي ترڅو چې هغه ورته اجازه نه وي کړې اعتکاف یې نه صحیح کیږي (البدائع)

⇦ او که خاوند خپلې ښځې ته یو ځل د اعتکاف کولو اجازه وکوله بیا یې وروسته منع کول غوښتل اوس یې نشي منع کولی اوس دا منع د خاوند په اختیار کې نشته . (عالمګیري)

## د اعتکاف ادبونه

⇦ څوک چې په اعتکاف کې وي هغه به صرف ښې خبرې کوي

⇦ د اعتکاف لپاره به چې څو کولی شي دومره ښه ځای او لوی جومات خوښ کړي

⇦ کوښښ به کوي چې ډیر وخت په تلاوت کې مصرف کړي

⇦ د علم مطالعه د حدیثو زده کړه او دیني مسئلې زده کول له هغه غوره کارونو څخه دي چې باید اعتکاف کونکی یې زیات وکړي .

⇦ که خبرې کوي نو داسې خبرې به کوي چې ګناه پکې نه وي او په کومو خبرو کې چې دنیاوي

خبرې ډېرې نه وي او د ګناه خبرې نه وي کولی يې شي .

⇦ د ثواب په نيت د خبرو څخه ځان بندول مکروه دي او دا ثواب نه دی .

# د اعتکاف ماتونکي

## د اعتکاف د ځای نه وتل

⇦ له جوماتت نه بغير د شرعي عذر نه وتل اعتکاف فاسدوي (المحيط)

⇦ که د شرعي عذر نه بغير د يو څه ساعت لپاره معتکف له جومات او يا زنانه د اعتکاف د ځای نه وزي نو اعتکاف يې فاسديږي (محيط السرخسي)

⇦ زنانه که د اعتکاف د ځای نه او يا نارينه که له جومات نه راوزي دا که قصداً وي ، که سهواً وي او که يې هير وي په ټولو صورتونو کې اعتکاف فاسديږي (فتاوی قاضي خان)

⇦ لکه مخکې چې تېر شول د زنانه لپاره ددې د اعتکاف ځای د جومات حکم لرې تردې به نور کورته هم نه وزي او که د ضرورت نه بغير وزي نو اعتکاف يې فاسديږي (محيط السرخسي)

⇦ که ښځه په جومات کې په اعتکاف کې وه او خاوند طلاق ورکړو نو کورته به لاړه شي او خپل اعتکاف ته به دوام ورکړي (التبيين)

# د وتلو لپاره عذرونه

⇦ د انساني ضرورياتو لپاره اعتکاف کونکی راوتلی شي لکن څنګه يې چې ضرورت يې پوره شو نو فوراً به خپل ځای ته رسوي او که د ضرورت نه بغير حصار شو که د لږ وخت لپاره هم وو د امام ابي حنيفه رحمه الله د مذهب له مخې يې اعتکاف فاسد شو (المحيط)

⇦ که د اعتکاف کونکي دوه کورونه وي يو لرې او بل جومات ته نېږدې وي نو د حاجت د پوره کولو لپاره به نېږدې کور ته ورځي او که د نېږدي کور په وجود کې دی لرې کور ته د قضاء حاجت لپاره لاړو نو اعتکاف يې فاسد شو (السراج الوهاج)

⇦ د حاجت د پوره کولو لپاره چې را وزي په درنښت او سنګينتيا به ځي په ده ضروري نه ده چې تېز تېز لاړ شي او يا منډې ووهي او همدارنګه د خپل اعتکاف په نظر کې د نيولو سره به خپل نظر تر ممکن حده پورې ښکته ساتي (النهاية)

⇦ د خوراک، څښاک او خوب د پاره به نه راوزي ځکه دا ټول کارونه په جومات کې ممکن دي (الهداية)

⇦ که په داسې جومات کې يې اعتکاف کړی وو چې هلته د جُمعې مونځ نه کيږي نو د جُمعې د مانځه لپاره وتلی شي لکن پداسې وخت کې به وزي چې هلته يې زيات وخت تېر نشي که جامع جومات ورته نېږدې وو نو تر زوال وروسته به روانيږي او که جومات ترېنه لرې وو که دی زوال ته صبر وکوي نو د جُمعې مونځ نشي را ګير کولی نو چې بيا کوم وخت ده ته داسې مناسب ښکاره کيږي چې د جُمې د مانځه نه دومره وختي ورسيږي چې ترڅو جمع دريږي دی څلور رکعته مونځ وکوي نو هغه وخت د روان شي او د مانځه نه وروسته به په جامع جومات کې دومره حصار شي لکه څوک چې څلور يا شپږ رکعته مونځ کوي او بېرته به خپل د اعتکاف جومات ته را روان شي . (الکافي)

⇦ که د کوم لوی عذر له امله له جومات نه ووت د مثال په توګه دا جومات وران شو يا په زور ويستلو ته اړ ايستل شو نو سم د لاسه لاړو بل جومات ته د اعتکاف په نيت ننوتلو نو اعتکاف يې نه ماتيږي (البدائع)

⇦ همدارنګه که په هغه جومات کې په خپل ځان يا په خپل مال و ډار شو او له ډاره يې نور پدې

جومات کې خپل اعتکاف نشوای پوره کولی نو ووتلو بل جومات ته ننوتلو اعتکاف یې صحیح دی (التبیین)

⇦ که د خپل حاجت لپاره را ووتلو او هلته دښمنانو ګیر کړو حصار یې کړو بېرته یې جومات ته تللو ته نه پرېښود د امام ابو حنیفه رحمه الله په مذهب یې اعتکاف فاسد دی او د امام محمد او امام ابو یوسف رحمه الله په مذهب یې اعتکاف نه دی مات. (عالمګیري)

⇦ د بېمار پوښتنې لپاره له اعتکاف نه وتل نشته (بحر ا لرائق)

⇦ که د اعتکاف د شروع په وخت کې په نیت کې یې دا خبرې شرط کړې چې دیني درس ته به مې ځم، د بیمار پوښتنې ته به ځم او جنازې ته به پکې ځم نو بیا د اعتکاف په دوران کې دې کارونو ته وتلی شي (التتارخانیة)

⇦ چې د اذان کولو لپاره یې لوړ ځای جوړ کړی وي هغه ځای ته له ختلو سره اعتکاف نه خرابیږي اګر که د هغه ځای لاره له جومات نه بهر هم وي او دا اذان که دده وظیفه وي او که نه وي دا هم څه فرق نه غورځوي د اذان ځای ته په هر صورت کې اعتکاف کونکی تللی شي (البدائع)

⇦ که څوک په اعتکاف کې وو او کور واله ته تر کړکۍ نه بهر سر ور وباسي چې هغوی یې ووینځي پدې سره دده اعتکاف نه خرابیږي (التتارخانیة)

⇦ دا دومره قیدونه ټول په سنت (د روژې په آخرو لسو ورځو ) او واجب اعتکاف کې دي (چې ده په ځان نذر کړی وي) په نفلي اعتکاف کې دی جنازې ته وتلی شي د بېمار پوښتنې ته هم تلی شي (شرح النقایة لابي المکارم)

## جماع او دواعي د جماع

⇦ د اعتکاف بل ماتونکی جماع او دواعي د جماع دي (په شهوت سره لاس لګول او یا مچي کول)

⇦ لاس لګول، غاړه اخیستل، مچي کول او جماع کول دا ټول شیان اعتکاف ماتوي او ددېنه بغیر نور شیان لکه شهواني فکر کول او یا په شهوت سره کتل هغه وخت اعتکاف ماتوي چې انزال وشي او ترڅو چې انزال ونشي دا شیان اعتکاف نه ماتوي . (عالمګیري)

⇦ د اعتکاف ماتونکي شیان په هروخت کې چې واقع شي اعتکاف ماتوي که د شپې واقع شي او که د ورځې . (عالمګیري)

⇦ همدارنګه که یې خوب ولیدو او غسل وربانديې واجب شو اعتکاف ورسره نه ماتیږي پدې

صورتونو کې که چېرته داسې څه صورت کېدو چې په جومات کې غسل وکوي او جومات ورسره ګنده (ککړ) نشي نو په جومات کې د ننه به غسل کوي او که په جومات کې داسې ځای نه وي چې دی پکې غسل وکوي نو بیا بهر ته هم وتلی شي غسل د وکوي او بېرته د جومات ته ستون شي. (عالمګیري)

## بې هوښي

بل د اعتکاف ماتونکی شی بې هوښي ده

⇦ که د ډېر وخت لپاره بې هوښه شو چې څو ورځې همداسې بې هوښه وو او د اعتکاف وخت تېر شو چې دی را بیدار شو نو ددې اعتکاف قضایي به را ګرځوي . (البدائع)

## اعتکاف نذر کول

⇦ کله یې چې په ځان باندې اعتکاف نذر کول صرف په نیت نه کیږي بلکه په ژبه  به یې په ځان لازموي (النهایة)

⇦ په ژبه يې چې په ځان باندې اعتکاف لازم کړو که يې ورځې يادې کړې نو شپې هم ورسره دي او که يې شپې يادې کړې نو ورځې هم ورسره دي او که صرف يوه ورځ يې ياده کړه بيا شپه ورسره نشته (فتح القدير)

⇦ کله يې چې کومه ورځ ياده کړه نو اعتکاف به د هغې نه په وړاندې ماښام کې شروع کوي يعني شپه د وروسته ورځې سره تړلې ده (الکافي) يعني چې د جُمعې د ورځې نه يې د يوې هفتې اعتکاف په ځان نذر کړی وو نو د پنجشبې د ورځې د مازيګر نه وروسته به ځان تيار کړي او د ماښام نه به په اعتکاف کې کيني .

⇦ که د اختر د ورځې اعتکاف يې په ځان نذر کړو نو د اختر په ورځ به په اعتکاف کې نه کيني بلکه بله ورځ به يې قضائي راوړي او که د اختر په ورځ کېناستو نو مکروه دی لکن بيا هم د نذر نه وربانډې خلاصيږي. (الخلاصة)

⇦ که چا په ځان باندې اعتکاف لازم کړی نه وو او په اعتکاف کې ناست وو او د څه وخت کېناستلو وروسته را ووتلو نو هېڅ شی وربانډې نشته (الظهيرية)

⇦ که د تېرې میاشتې اعتکاف چا په ځان نذر کړو نو دا نذر یې نه دی صحیح او په ده باندې هېڅ شی لازم نه دي (البحر الرائق)

⇦ که چا په ځان باندې د یوې میاشتې اعتکاف نذر کړو او ده له هغه نه وړاندې یوه میاشت اعتکاف وکولو یا یې په ځان نذر کړو چې په مسجد الحرام (مکه مکرمه) کې به اعتکاف کوي بیا یې په بل ځای کې وکولو نو صحیح دی (البحر الرائق)

# د اعتکاف په اړه مختلفې مسئلې

⇦ په اعتکاف کې داسې پټه خوله کېناستل چې دی یې عبادت وګڼي دا مکروه دی او که هسې پټه خوله ناست وو او دا یې عقیده نه وه چې دا ثواب دی بیا مکروه نه دی (التبیین)

⇦ له بدو خبرو چپتیا په ټولو عبادتونو کې غوره عبادت دی (الجوهرة النیرة)

⇦ جنګ کول او لانجه کول او بحث کول اعتکاف نه فاسدوي (الخلاصة)

⇦ که اعتکاف کوونکی واده کوي او نکاح کوي نو پدې سره اعتکاف نه فاسدیږي (الجوهرة النیرة)

⇦ په عطرو لګولو يا تېلو لګولو باندې اعتکاف نه خرابيږي (الخلاصة)

⇦ که اعتکاف کونکي د شپې نشه وکوله اعتکاف يې نه خرابيږي ځکه نشه په دين کې حرامه ده د اعتکاف سره يې څه تکر نشته همدارنګه که پردی مال يې وخوړونو ددين خلاف کار يې وکولو او دا شيان د اعتکاف ماتونکي نه دي (فتاوی قاضي خان)



# ماخذونه

- المبسوط للسرخسي
- شرح الوقاية
- حاشية ابن عابدين (رد المحتار على الدر المختار)
- غمز عيون البصائر في شرح الأشباه والنظائر
- العناية شرح الهداية
- فتاوای قاضيخان
- التتارخانية
- محيط السرخسي
- الهداية
- الكتاب
- اللباب في شرح الكتاب
- حاشية طحطاوي على المراقي
- فقه العبادات (حنفي)
- الاشباه و النظائر

- مراقي الفلاح
- الفتاوى الهندية (عالمگيري)
- تحفة الملوك
- البحر الرائق شرح كنز الدقائق
- جامع الرموز
- إرشاد أهل الملة إلى اثبات الأهلة
- المحيط البرهاني في الفقه النعماني
- الجامع الصغير
- شرح رائض الفرائض
- بدائع الصنائع
- تبيين الحقائق شرح كنز الدقائق
- المبسوط
- الإنتصار والترجيح للمذهب الصحيح
- مجمع الأنهر شرح ملتقى الابحر
- النافع الكبير
- نور الايضاح
- منية المصلي

# د مؤلف چاپ شوي آثار

1. د حضرت محمد ☸ د نبوت معجزې
پښتو

2. ړنګه ځاله
پښتو

3. آشيانه سوخته
فارسي

4. په اسلام کې د انسان حقوق
انګليسي

5. دين يې دام دى ددنيا په لار کې ايښى
پښتو

6. فرار از کزار
فارسي

7. له کزاره تېښته
پښتو

8. زوړ دين نوى مسلمان
پښتو

9. ډم ډمکو جي او ليکوال پښتو

10. اديان پشت در فارسي

11. له دروازې تر شا دېنونه پښتو

12. د انصاف او اعتدال لاره پښتو

13. کفري الفاظ پښتو

14. کل بچه فارسي

15. معلومات عمومي فارسي

16. د حج لارښود پښتو او انګليسي

17. محمد رسول الله ﷺ سيرت اخلاق او پېژندنه پښتو

18. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه اول پښتو

19. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه دوهم پښتو

20. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه دريم پښتو

21. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه څلرم پښتو

22. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه پنځم پښتو

23. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه شپږم پښتو

24. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه اوم پښتو

25. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه آتم پښتو

26. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه نهم پښتو

27. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه لسم پښتو

28. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه اول پښتو

29. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه دوهم پښتو

30. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه دریم پښتو

31. د علم حدیث مطالعه پښتو او انګلیسي

32. د فقهي کتابونو له پانو ثخه ثلورم ستاسې په لاس کې

